مختصرا.

البحرالرایق)

**خلص مطلب** :دبحرالرائق دمصنف (علامه زین بن نجیم) رح له پورتني عبارت نه هماغسې حاصل اخستلای شو ،چې څرنګه موله نوروفقهي کتابونو نه واخست ،دلته هم هماغه خبره تکرارشوه، چې دمسلمانانو مشرته مکروه دي، چې دبیت المال دشتون په صورت کې ،له خلکو نه دمجاهدینودوسایلو پیسې واخلې ،خوکه بیا بیت المال کې څه شئ نه وو ،نودضرورت په اندازه ورته رواده ،استدلال یې لکه دنوروکتابونودصفوان په روایت اوددوهم خلیفه په عملي تګلاره باندې کړی دی ،د(امام رکن الدین علی سغدی رح )قول یې راخستی، چې که چیرته دپیسو خاوند غازی ته ووایې: چې زما لپاره پدې پیسو جهادوکړه !نودااسې نده روا لکه چې ورته ووایې چې زما لخوا حج وکړه او که چیرته ورته ووایې چې داپیسې واخله اوجهادپرې کوه، نو بیا رواده ،البته په (شرح السیر) کې لیکلې :په هرحال مجاهد دجهادله پیسونه خپل قرض اودکوردنفقي په شمول خپل ضروریات اخستلای شي.

ویکره الجعل ما کان للمسلمین فيء فإذا لم یکن فلا بأس بأن یقوي المسلمون بعضهم بعضا............ قوله ویکره الجعل المراد به ان یضرب الامام بالجعل علی الناس للغزوة وإنما کره لما فیه شبهة الاجرة وأخذ الاجرة علی ا لجهاد حرام فما یشبه یکون مکروها فإذا لم یکن للمسلمین شيء لا بأس بذلک لوقوع الحاجة إلی الجهاد

(الجامع الصغیروشرحه النافع الکبیر..)ج/۱ص۳۲۰

**ژباړه** :که چیرته مال فئ دمسلمانانو وی نو جعل اینښودل پرې مکروه دی اوکه نوي نو باک نلري ،چې بعضي مسلمانان بعضي نور قوي کړي ،اوله جعل نه مطلب دادی :چې دوخت پاچا یې دغازیانولپاره په خلکو مقررکړي ،اوداځکه مکروه دی، چې دې کې تشبیه له اجرت سره ده اوداجرت اخستل په جهاد باندې حرام دي، نوهغه چې ورسره مشابه وي ،هغه مکروه دي، بیا چې کله مسلمانان څه نلري ،نوپدې کې باک ځکه نشته چې دجهاد ورته اړتیا ده.

(وکره الجعل) أي أخذ المال من الناس لاجل الغزاة (مع الفئ) أي مع وجود شئ في بیت المال.

درر.

وصدر الشريعة، ومفاده: أن الفئ هنا يعم الغنيمة فليحفظ (وإلا لا) لدفع الضرر الاعلى بالادنى الدر المختار للحصفكى )ج۴

**ژباړه:** جعل يعني دغازيانو لپاره دعامو خلكونه د(فئ مال) په شتون كې پيسې اخستل مكروه دي ،اودلته فئ عام دى غنيمت ته هم شامل دى ،ځكه دغتې ضرر دفع په واړه ضرر سره راځي.

( وَيُكْرَهُ الْجُعَلُ مَا دَامَ لِلْمُسْلِمِينَ فَيْءٌ ) لِأَنَّهُ يُشْبِهُ الْأَجْرَ ، وَلَا ضَرُورَةَ إلَيْهِ ؛ لِأَنَّ مَالَ بَيْتِ الْمَالِ مُعَدٌّ لِنَوَائِبِ الْمُسْلِمِينَ.

قَالَ ( فَإِذَا لَمْ يَكُنْ فَلَا بَأْسَ بِأَنْ يُقَوِّيَ بَعْضُهُمْ بَعْضًا ) لِأَنَّ فِيهِ دَفْعَ الضَّرَرِ الْأَعْلَى بِإِلْحَاقِ الْأَدْنَى ، يُؤَيِّدُهُ { أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَخَذَ دُرُوعًا مِنْ صَفْوَانَ } وَعُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ كَانَ يُغْزِي الْأَعْزَبَ عَنْ ذِي الْحَلِيلَةِ ، وَيُعْطِي الشَّاخِصَ فَرَسَ الْقَاعِدِ .

## الشَّرحُ

وَقَوْلُهُ ( وَيُكْرَهُ الْجُعْلُ مَا دَامَ لِلْمُسْلِمِينَ فَيْءٌ ) أَرَادَ بِالْجُعْلِ مَا يَضْرِبُهُ الْإِمَامُ لِلْغُزَاةِ عَلَى النَّاسِ بِمَا يَتَقَوَّى بِهِ الذِينَ يَخْرُجُونَ إلَى الْجِهَادِ ( لِأَنَّهُ يُشْبِهُ الْأَجْرَةَ ) وَحَقِيقَةُ الْأَجْرَةِ حَرَامٌ فَمَا يُشْبِهُ الْأَجْرَةَ يَكُونُ مَكْرُوهًا .

(العناية شرح الهداية ج۴ص۴۴۰

دهدايې له شرحې (عنايې) دعبارت خلص مطلب همدا راوځي: چې كه دبيت المال دشتون په صورت كې خليفه يا امام غازيانو ته په خلكو پيسې ماتې كړي ،نودابه دده يومكروه عمل وي ،كه بيت المال خالي وې ،نوبيا يې داړتيا له مخې دصفوان بن اميه اوعمر رض داستدلالاتو لمخې ترې اخستلاى شي.

دهدايې لاندينى عبارت هم ورته افاده وركوي ،چې بيت المال وي ،نودمسلمانانو مشرته مكروه ده، چې له عامو خلكونه دغزاتو دتجهيزاوتسليح لپاره پيسې واخلې ،بيا كه بيت المال تش وي ،نواخستلاى يې شي ،دصفوان روايت او هم دعمر رض تګلاره يې ښه دليل دى لكه چې وايې:

ويكره الجعل ما دام للمسلمين فيء لأنه لا يشبه الأجر ولا ضرورة إليه لأن مال بيت المال معد لنوائب المسلمين

قال: فإذا لم يكن بأس بأن يقوي بعضهم بعضا لأن فيه دفع الضرر الأعلى بإلحاق الأدنى ويؤيده أن النبي عليه الصلاة و السلام أخذ دروعا من صفوان وعمر رضي الله عنه كان يغزي الأعزب عن ذي الحليلة ويعطي الشاخص فرس القاعد والله أعلم بالصواب

(الهدايه) ج١ص٣٧٨

---

د(بدائع الصنائع) په لانديني عبارت کې هم عين مفهوم نغښتل شوی، چې جهاد طاعت دی او پدې پيسې اخستل مکروه دي:

ولنا أنه استئجار لعمل مفروض فلا يجوز كالاستئجار للصوم والصلاة ولأنه غير مقدور الاستيفاء في حق الأجير لتعلقه بالمتعلم فأشبه الاستئجار لحمل خشبة لا يقدر على حملها بنفسه وقد روي "أن أبي بن كعب رضي الله عنه أقرأ رجلا فأعطاه قوسا فسأل النبي صلى الله عليه وسلم عن ذلك فقال صلى الله عليه وسلم: أتحب أن يقوسك الله بقوس من نار قال: لا فقال صلى الله عليه وسلم: فرده" ، ولا على الجهاد ؛ لأنه فرض عين عند عموم النفير وفرض كفاية في غير تلك الحال وإذا شهد الوقعة فتعين عليه فيقع عن نفسه وروي أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال "مثل من يغزو في أمتي ويأخذ الجعل عليه كمثل أم موسى ترضع ولدها وتأخذ عليه أجرا" ،

(بدائع الصنائع فى ترتيب الشرائع) ج١٠ص٧٠

---

( وَكُرِهَ الْجُعْلُ ) وَهُوَ مَا يُجْعَلُ لِلْعَامِلِ فِي عَمَلِهِ وَالْمُرَادُ مَا يَجْعَلُ الْإِمَامُ عَلَى أَرْبَابِ الْأَمْوَالِ شَيْئًا بِلَا طِيبِ أَنْفُسِهِمْ يَتَقَوَّى بِهِ الْغُزَاةُ فَإِنَّهُ مَكْرُوهٌ ( مَعَ فَيْءٍ ) أَيْ وُجُودِ شَيْءٍ فِي بَيْتِ الْمَالِ ( وَبِدُونِهِ ) أَيْ إذَا لَمْ يُوجَدْ فَيْءٌ ( لَا ) يُكْرَهُ الْجُعْلُ.....الشرح: قَوْلُهُ: مَعَ فَيْءٍ أَيْ مَعَ وُجُودِ شَيْءٍ ) فَسَّرَ الْفَيْءَ بِالشَّيْءِ لِيُبَيِّنَ أَنَّ الْمُرَادَ بِهِ وُجُودُ مَالِ بَيْتِ الْمَالِ سَوَاءٌ كَانَ أَصْلُهُ مِنْ الْفَيْءِ أَوْ مِنْ غَيْرِهِ كَالْأَمْوَالِ الضَّائِعَةِ.

( قَوْلُهُ: إذَا لَمْ يُوجَدْ فِيْءٌ لَا يُكْرَهُ الْجُعْلُ ) هُوَ الصَّحِيحُ وَقِيلَ يُكْرَهُ وَأَطْلَقَ الْإِبَاحَةَ فِي السِّيَرِ وَلَمْ يُقَيِّدْهُ بِشَيْءٍ وَاسْتَدَلَّ عَلَيْهِ بِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ { مَثَلُ الْمُؤْمِنِ الَّذِي يَغْزُو بِأَجْرٍ كَمَثَلِ أُمِّ مُوسَى تُرْضِعُ وَلَدَهَا لِنَفْسِهَا وَتَأْخُذُ عَلَيْهِ الْأَجْرَ وَكَانَتْ تَأْخُذُ مِنْ فِرْعَوْنَ دِينَارَيْنِ فِي كُلِّ يَوْمٍ } ، كَذَا فِي التَّبْيِينِ.

(دررالاحکام شرح غرر الاحکام )ج۲ص۲۳۰

**ژباړه** :د( دررالاحکام ) مصنف علامه (منلا خسرو ) رح لیکي: چې **جعل** مکروه دی او دا هغه دی ،چې عامل ته دده په عمل کې مقررشي ،دلته تري مراد هغه دی ،چې حاکم دغازیانو دتقویې لپاره پرشتمنو ،ددوئ له خوښې پرته پرې دا مصارف وضع کړي خو دا بیابیت المال کې د(مال فئ) دشتون په صورت کې مکروه دی ،خو په (سیر )کې یې پرې دمطلق اباحت اطلاق کړی اوکوم تقیید ورسره نشته، اودلیل کې هغه حدیث راوړی ، چې پکې دموسی ع دمورپېښه راوړل شوي ، چې هره ورځ به یې له فرعون دوه درهمه دخپلو هغو شیدو په پار اخستلې ،چې خپل زوی موسی ع ته به یې دخپل ځان لپاره ورکولې ........

**دبحث نتیجه** :**الف**:عام فقهاء پدې نظردي:چې دامام (**جعل** )پدا سې حال کې چې بیت المال کې( فئ )وي مکروه دی.

ب:که بیت المال خالي وي ،نو بیادې باک نشته ،چې امام المسلمین پر رعیت باندې دمجاهدینو لپاره دجهادلګښت وټاکي.

ج: دځینو اقوالو له مخې مجاهد کولای شي ،چې دجهاد په نوم دورکړل شویو پیسو نه دجهاددوسلو په څیرخپل پورونه او دکورنفقه واخلي.

د: دمسلمانانومشربه کوشش کوي چې **جعل** له شتمنو خلکونه واخلي.

ه:که کوم څوک مجاهد سره دجهادلپاره ورسره مرسته کوي، باید داسې ورته وواېي چې داپیسې ستاشوي جهاد پرې وکړه.

ز:که ورته وواېي چې پدې پیسوزما لپاره جهادوکړه ،دا الفاظ صحیح ندي ، خوبیاهم ددې مصرف به له جهادي چارونه په غیر نوي

# دتورخم په فدایي بریدکې ددښمن ګڼ شمیر پوځي وسایط ویجاړاوډیری پوځیان ووژل شول

جلال اباد (پژواک ۱۱ وری ۹۲): د ننګرهار په سرحدي ښار ګوټي تورخم کې د ناټو پر پوځي اډې د شوي ډله ییز برید پر مهال د دغو ځواکونو ګڼ شمېر پوځي وسایط چې له افغانستانه بهر لېږدول کېدل هم سوځېدلي او له منځه تللي دي.

یوې ډلې وسله والو طالبانو (د وری ۱۱مه) سهار شاوخوا شپږ بجې په تورخم کې د ناټو ځواکونو پر پوځي او ورسره نږدې د سرحدي پولیسو پر یوه مرکز ډله ییز برید وکړ او له هغوی سره رامنځته شوې جګړه له دریو ساعتونو وروسته پای ته ورسېد.

په تورخم کې د سرحدي پولیسو د لومړۍ لوا د پنځم کنډک درستیزوال سمونیار سیداحمد احمدزي پژواک اژانس ته وویل، چې په دې پېښه کې د ناټو ګڼ شمېر هغه پوځي وسایط هم سوځېدلي او له منځه تللي چې له افغانستان څخه د ایستلو لپاره یې په موټرو کې بار کړي وو.

هغه زیاتوي، یاد وسایط په ټېلر موټرو کې د افغانستان له نورو سیمو د تورخم له لارې د پاکستان کراچۍ بندر ته وړل کېږي.

د پژواک ویډیو خبریال ببرک امیرزاده وایي، چې پېښه یې له نږدې لیدلې او وایي چې پر ټېلرو بار ګڼ شمېر ټانکونه او نور پوځي وسایط په بشپړه توګه سوځېدلي دي.

د هغه په وینا، د دې ترڅنګ د تېلو ټانکر، ټېلر او نور یو شمېر شخصي موټر هم زیانمن شوي دي.

په کابل کې د ناټو په مشرۍ د ایساف مطبوعاتي دفتر په تورخم کې د دوی پر یوې پوځي اډې د ډله ییز برید پخلی کوي.

طالب ویاند ذبیح الله مجاهد وایي، چې یوې ډلې طالبانو نن سهار په تورخم کې د امریکایانو پر پوځي مرکز برید کړی او بیا یې څو ساعته جګړه وکړه.

هغه زیاتوي، چې په دغه برید کې لسګونه ټانکونه، ماین پال پوځي موټر، لسګونه ټېلر او له پوځي وسایلو ډک ۹ نور کانټینر موټر سوځول شوي او له منځه تللي دي.

مجاهد دغه راز ادعا وکړه، چې په دغه برید کې ګڼ شمېر کورني او بهرني سرتېري هم وژل شوي دي.

نورخپلواکیورسنیوهم دتورخم دځپونکې برید تر تایید وروسته داسلامي امارت دمجاهدینولخواپر دښمن داسې بریدونه هیښونکي بللي اودایې دمجاهدینودزیات پوځي تحرک او محاربوي وړ تیانښه ګڼلي ،ځینې شنونکي پدې آند دي چې دتورخم دبریدغوندې دمجاهدینوحملې به امریکایان دې وهڅوي چې ۲۰۱۴زکال کې دچورلټو وتلو تصمیم خپل کړ ي او دکابل دګوډاګیانودې غوښتې ته منفي ځواب ووایې چې هیواد کې تلپاتي پوځي ولري او دکابل غلامه اداره دتل لپاره دخپلوپوځیانوپه زورله سقوطه وساتي

# دمشورې اهمیت او حیثیت

مولوي عبدالصمد ''سیال''

هغه زرین اصول او مقررات چې موږته کامل او اکمل دین مقرر کړي، دهغوی په رڼا کې که ژوندو کړو نو تل به مو دخیر او مصلحت لوری نیولی وي ، هیڅ کله به مو په اجتماعي او شخصي ژوند کې نظم او نسق له ستونزو ډک نه شي ،زموږ په ټولنه کې اکثروخت ستونزي وي چې دهغوی دپیدا کیدلو لامل یو اځي داوې چې یا خوله همدي مقرراتو خبرشوي نه یو اویا یې په عمل کې نه پلي کوو

موږته داسلام مبین دین ښیي چې دچارو په تنظیم کې باید په قرآني نصوصو یانبوي ارشاداتو عمل وشي اوکه چېرې په قرآن یا احادیثو کې دکومي چاري په اړه څه بحث نه وي شوی نو بیادي دیو څو مصلحو مسلمانانو په مشوره یو کار ترسره شي ترڅو هغه عمل دنیوي او اخروي ثمره ولري

درنو لوستونکو ! هدف موداد ی چې دلته دمشورې په شرعي حیثیت او اهمیت بحث وکړم دابحث به ان شاء الله په شپږو برخو وویشو

## لمړۍ برخه : دشوری یامشورې تعریف

دشوری یامشورې دلفظ معنی ده مصلحت پلټنه ، یعني په یوداسي معامله کې چې هغه دفکرکولو قابله وي دخلکو رایې حاصلول نو رکه هغه ترحکومتي کارونو پورې اړه لري یا کوم نورځانګړې امور وپورې.

## دوهمه برخه : دمشورې شرعي حیثیت

دمشوري شرعي حيثيت داد ی چې په هر داسي کار يامعامله کې چې په هغې کې مختلفي رايي کيدلی شي په هغې کې ديوبل څخه مشوره اخستل دنبي کريم صلی الله عليه وسلم اودصحابه کرامو رضی الله عنهم سنت اوپه دنيا اوآخرت کې دبرکتونو باعث ده.

په قرآن کريم اوګڼ شميراحاديثو کې ددې تائيد شوی ، دقرآن کريم دآل عمران په سورة کې الله تعالی نبي کريم صلی الله عليه وسلم ته ارشاد کوي : وشاورهم فی الامرفاذاعزمت فتوکل علی الله **۵۹**آية،ژباړه : اومشوره کوه له دوئ [صحابه کرامو]سره په کارکې نوکله چې دې قصدوکړ [ددغه کار] نوبياتوکل کوه پرالله تعالی باندي.

همدارازدقرآن کريم په سورة الشوری کې الله تعالی دصالحو بندګانو په صفاتو کې دمشوري کول داخل کړي اوداسي فرمايي: وامرهم شوری بينهم : ژباړه: اوددوئ [صالحوبندګانو] هرکارپه مشوره سره وي

يعني يوصفت دريښتوني مؤمنانوداد ی چې په خپل مينځ کې مشوره سره کوي ، همدارازدپه ځينوځايوکې په ضمني طورسره الله تعالی دمشوري هدايت فرمايلی لکه درضاعت په احکاموکې چې فرمايي: عن تراض وتشاور ، يعني کوچنی له تې څخه پريکول دموراوپلاردواړوپه مشوره اورضامندي سره په کارده.

همداشان علامه بيهقي په شعب الايمان کې له حضرت عبدالله ابن عمررضی الله عنه څخه روايت کړی دی چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل: کوم څوک چې ديوه کارارادہ وکړي اوديوبل سره دمشوري کولو وروسته يې دهغه کاردکولو يادنه کولو فيصله وکړه نودالله تعالی له طرفه څخه ده ته دصحيح اوفايده مند صورت وطرفته هدايت حاصليږي

اوپه يوبل حديث کې راغلي دي چې کله ستاسو حاکمان په تاسو کې ښه خلک وي اوستاسو مالداران سخيان وي اوستاسومعاملي ديوبل په مشوره باندي سرته رسول کيږي نوستاسو دپاره پرزمکه سربيره اوسيدل غوره دي

اوکله چې ستاسو حاکمان په تاسو کې ترټولو ناکاره خلک وي اوستاسومالداران بخيلان وي اوستاسو معاملي ښځوته سپارل شوي وي نودځمکي دننه دفن کيدل به ستاسو لپاره ترژوندي اوسيدلو ښه اوغوره وي.

مطلب دا دی چې کله پر تاسو هوس پرستي غالبه شي چې له ښه او بد ، نفع او ضرر څخه نظر قطع کړئ او يوازې د ښځو د خوشحالولو لپاره خپلې معاملې دوی [ښځو] ته وسپارئ نو د دغه وخت له ژوند څخه تاسو لره مرګ ښه دی

د حديث مطلب دا نه دی چې له ښځو څخه رايه اخستل منع دي بلکه مطلب دا دی چې مشوره مو په امورو کې منتفي او نيستي شي .

## دريمه برخه : مشوره بايد په کوموشيانو کې ترسره شي ؟

بايد پوه شو چې مشوره يوازې په هغه شيانو کې سنت ده د کومو په باره کې چې په قرآن کريم او احاديثو کې قطعي حکم موجود نه وي ، او په کوم ځای کې چې واضح او قطعي حکم وي په هغې کې له چا سره د مشورې کولو ضرورت نشته بلکه جائز هم نه ده

د بېلګې په ډول که يو څوک په دې کې مشوره کوي چې لمونځ وکړم او کنه ؟ زکات ورکړم او کنه ، حج وکړم او کنه ؟نو دا د مشورې شيان نه دي ،دا په شرعي طور سره قطعي فرض دي ، البتة په دې کې مشوره کولی شي چې حج ته په دې کال کې لاړ شم او که په راتلونکي کال کې ، او داسې نور ... ،همدا ډول د زکات په معامله کې داسې مشوره کولی شي چې دا په کوم ځای کې او کومو خلګو ته ورکړي ، ځکه چې دا ټولې خبرې شرعا اختياري دي ، په يوه حديث کې خپله له نبي کريم صلى الله عليه وسلم څخه دا تشريح نقل شوې ده ، حضرت علی کرم الله وجهه فرمايي : چې ما رسول الله صلى الله عليه وسلم ته عرض وکړچې ستاسو څخه وروسته که موږ ته څه داسې معامله را پېښه شي چې د هغې حکم په ډاګه سره په قرآن کريم کې نه وي نازل شوی او ستاسو څخه مو هم په دې باره کې کوم ارشاد نه وي اوريدلی نو موږ به څه کوو ؟ نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: چې د داسې کار د پاره په خپلو کې عابدين فقهاء جمع کړئ او د هغوئ په مشوره د دغه کار فيصله وکړئ ، د يو چا په يوازې رايه فيصله مه کوئ.

له دې حديث څخه په ډاګه معلومه شوه چې مشوره به په داسې کار کې کوله کيږي چې په هغه کې واضح شرعي نصوص نه وي موجود

## څلورمه برخه : مشوره بايد له چا څخه واخستل شي ؟

په دې باره کې علامه خطيب بغدادي د ابو هريرة رضي الله تعالى عنه په يوه حديث کې د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه داسې ارشاد نقل کړی دی: استرشدوا العاقل ولاتعصوه

فتندموا ، ژباړه: له هوښیاراوامین سړي څخه مشوري ترلاسه کوئ اودهغه خلاف مه کوئ کنه نوپښېمانه به شئ.

همدارازپه یوبل حدیث چې طبراني له حضرت علی رضی الله عنه څخه نقل کړی داسې راغلي: المستشار مؤتمن اذااستشیرفلیشره بماهوصانع لنفسه ،ژباړه: له کوم سړي څخه چې مشوره وغوښتله شي هغه به امین وي اوپه دغه مستشار باندي لازمه ده چې دخپل ځان له پاره څه غوره کوي هغه به دغه مشوره غوښتنکي ته وایې اوکه حق یاواقعیت خلاف مشوره ورکړي نوخیانت کوي.

له دغه احادیثو څخه معلومیږي چې دمجلس شوری په ارکانوکې دوه صفتونه ضروري دي یوداچې عقلمندبه وي او دوهم داچې عابد اومتقي به وي اوکه چیرته داعمل یوه شرعي مسئله وي نوبیا ورته فقیه والی هم ضروري دی

## پنځمه برخه : په اسلامي حکومت کې دمشوري درجه څه ده ؟

لکه چې مخکي موذکرکړل په قرآن کریم کې دوه ځایه دمشوري کولو ښکاره حکم راغلی دی یوپه سورة آل عمران اوبل په سورة الشوری کې اوپه دي دواړو کې دمشوري له لفظ سره دامرلفظ هم ذکرشوی اوامرمهتم بالشان قول اوفعل ته ویل کیږي یعني هغه فعل اوقول چې اهتمام اوغمخوردګي یې کول کیږي اودحکم اوحکومت په معنی هم استعمالیږي ، په هرصورت که دامرهره معنی واخلي نودحکومت په معاملو کې مشوره کول له دي آیتونو څخه ضروري معلومیږي، ولي که له امرڅخه اوله معنی واخلي نودحکومت معاملي خوترنورومعاملو زیاتي مهمي دي اوکه دوهمه معنی ورڅخه مرادشي نوبیاخوښکاره خبره ده ځکه چې دامرمعنی حکومت دی ،

له دي وجهې داسلامي امیرلپاره ضروري ده چې دحکومت په مهمو معاملوکې دهوښیارانو اوعلماؤ څخه مشوره واخلي ، همداشان په تېرو شویو آیتونوکې داسلامي حکومت یوڅه بنیادي اصول هم راته څرګندشول چې اسلامي حکومت به یوشورایي حکومت وي ،په دي کې به دامیرانتخاب په مشوره سره کول کیږي اودابه یوخانداني میراث نه وي ، که داسلام ددین ترخپریدومخکي زماني ته وکتل شي نوڅرګنده به شي چې دهغوئ حکومتونه پرشخصي اووراثتي بادشاهي باندي مشتملؤ په دوئ کې به یوې کورنۍ پرلکونوکروړونوانسانانوباندي په خپل قابلیت اوصلاحیت نه بلکه دوراثت دظالمانه اصولو

په بناء حکومت کاؤ ، انسانانو ته به د پالتو حیوانانو په نظرهم نه کتل کیدل ، د دي برخلاف اسلام په حکومت کې دوراثت غیرفطري اصول باطل کړل د حکومت د امیرمقررکول او معزولول یې د جمهورو په لاس کې ورکړل

اسلامي قانون د خدای جل جلاله مخلوق د کسری او قیصر او نورو شخصي حکومتونو له زور او ظلم څخه خلاص کړل ، د اسلامي قانون له مخې امیربايد د اسي څوک منتخب شي چې په علم ،تقوی ، صلاحیت او سیاسي تجربه کې ترټولو غوره وي او بیا د امنتخب شوی امیربه هم ازاد او د خپل اختیارنه وي بلکه د اهل الرأی څخه به د مشوري پابندوي ،د قرآن کریم د ذکرشوی سورة اية او د نبي کریم صلی الله علیه وسلم او د خلفاء راشدینو کارونه پردي باندي عادلانه شاهدي ورکوي .

همدارازد حضرت عمر رضی الله تعالی عنه ارشاد دی: لاخلافة الاعن مشورة ،یعني له مشوري پرته خلافت نشته.

همدارازکنزالعمال د ابن ابی شیبة په حواله لیکلي چې مشوري او شورا ته په اسلامي حکومت کې د اسي بنیادي او اساسي حیثیت حاصل دی چې که د حکومت امیر له مشوري څخه ازاد شي یا له د اسي خلکو څخه مشوره اخلي چې د شریعت په بناء د مشوري اهل نه وي نو بیا د دغه امیر معزول [گوښه] کول ضروري دي

**شپږمه برخه :**

که په مشوره کې رایي مختلفي شي نو د فیصلي صورت به کوم وي ؟

له قرآن کریم او احادیثو څخه د اخبره نه ثابتیږي چې د اختلاف د رایی په صورت کې به امیرد اکثریت په رایی باندي د فیصلي کولو پای بندوي

بلکه د قرآن کریم له ځینو اشارو او د احادیثو او د صحابه کرامو له عمل څخه د اخبره ښکاره او واضحه ده چې د اختلا ف رایي په صورت کې امیرته چې کوم اړخ غوره او قوي معلوم شي هغه اختیارولی شي نورکه هغه د اکثریت مطابق وي یا د اقلیت ،البته امیرد خپل اطمنان د حاصلولو لپاره لکه څنګه چې په نورو دلیلونو باندي نظرکوي د غه شان چې اکثریت په یو شیئ باندي متفق شي نو د اهم د ده د پاره ځیني وخت د اطمنان باعث جوړید لی شي ،

دسورة آل عمران په ذکرشوي آيت باندي که فکروشي نوپه دي کې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دمشوري دحکم کولو وروسته الله تعالی داسي فرمايي: فاذا عزمت فتوکل علی الله ،يعني له مشوري کولو وروسته چې دي کوم اړخ ته پخه اراده وکړه نوبيا توکل کوه ، په دي کې يې دعزمت په لفظ کې دعزم يعني دحکم دنافذولو پخه اراده کول يواځي نبي کريم صلی علیه وسلم ته منسوب کړل عزمتم يې ونه ويل چې په قصد اوحکم نافذولو کې ورڅخه دصحابه کرامو شرکت هم معلوم شوی وای ، له دي اشاري څخه معلومه شوه چې له مشوري اخستلو وروسته حکم نافذول اوعزم يواځي دامير معتبردی

همداشان نبی کريم صلی الله علیه وسلم ډيرځله دشيخينو [ابوبکر الصديق اوعمرفاروق رضی الله تعالی عنهما] رايوته دجمهورو صحابه کرامو په مقابله کې ترجيح ورکړي ده ، تردي چې داسي به ګڼل کيده چې ذکرشوی آيت يواځي ددي دوو تنو څخه دمشوري اخستلو لپاره نازل شوی

حاکم په مستدرک کې په خپل سندسره دحضرت ابن عباس رضی الله عنه څخه روايت کړی ده چې: عن ابن عباس فی قوله تعالی: وشاورهم فی الامر ، قال ابوبکر وعمر : يعنی ابن عباس رضی الله تعالی عنهما فرمايې: چې په دي آيت کې دشاورهم له ضمير څخه مراد شيخين دي

اودکلبي روايت له دي څخه نورهم واضح دی: عن ابن عباس قال: نزلت في ابي بکروعمر وکاناحواری رسول الله صلی الله علیه وسلم ووزيريه وابوی المسلمين ، ترجمه ابن عباس رضی الله عنهما فرمايي: چې داآية دحضرت ابوبکر اوحضرت عمررضی الله عنهما څخه دمشوري اخستلو لپاره نازل شوی ؤ اودادواړه حضرات دنبي کريم صلی الله علیه وسلم وزيران ؤ اودمسلمانانو دپلارپه شان پالونکي ؤ

حضرت عمرفاروق رضی الله عنه به ځيني وخت چې ددلائلو په لحاظ سره ورته دعبد الله ابن عباس رضی الله عنهما رايی زياته مضبوطه ښکاريده نودهغه په رايه به يې فيصله نافذوله اوحال داؤ چې په مجلس کې به ترابن عباس په عمر اوعلم کې زيات صحابه کرام په کثرت سره موجودؤ

# منفورې څېرې او اجیر ایتلافونه !..

لطیف "عزم"

په داسې حال کې چې امریکایان په افغانستان کې نور په سلو کې ۵ فیصده هم په پوځي بریا اوپر مختګ باور نلري اوعملاً یې له افغانستان څخه دلښکرو او تجهیزاتو په ویستلو پیل کړی ،په سیاسي میدان کې دشیطانت دغه لوی محور توندي هڅې په کاراچولي تر څو لدوی ورسته افغانان هیڅکله دارامی اوسو کالی ساه وانخلي اونه یې هم دملي وحدت شیرازه اباده او کوشیرپاتي شي .

کوم ایتلافونه اواتحادونه ، چې په اصطلاح دولسمشری دراتلونکوټاکنو په موخه په دې ورستیو کې دامریکادلوی تالیخټي (خلیلزاد) په ابتکار اوفرمایش په وجود راغلل اویانورپه لار اوجوړیدودي ، داپه مجموع کې هغه امریکایي دام اوتلک دي چې دتیرو ۱۳ کلونوپه مهال یې افغانانو ته ایښي وو خوالله تعالی شنډ ، نابود او کومه لاسته راوړنه یې نه درلوده ؛ اوس بیا خپله هڅه کوي چې په هغه غوړیدلي دام کې افغانان راایسار اوښکیل کړي اودافغانستان دوروڼو قومونو اوملیتونو ترمنځ دتشتت اوپراګندي نوي تخمونه وشیندي اوخدای مکړه آن دواحدافغانستان دویشلو دسیسه راپورته کړي.

دحیر انتیاځای خودادی چې خلیلزادپه افغانستان کې پرته له هغومنفور څېرواو ګوډاګیوډلوټپلو بل څوک پیدانکړل چې دافغانستان دزعامت اوبرخلیک ټاکلوپاره یې غوره کړي ، بلکې بیرته یې دهغوامریکایي غلامانوپه ځلولواووینځلولاس پورې کړ چې دادری نیمي لسیزی ترینه افغانان رنځ وړي .

افغانان هغه څېري چې اوس خلیلزادپرې یوځل بیاګوتي وهلي اویوواربیایي په افغان ولس تپل غواړي که هغه دشمال دي اوکه دجنوب دي ډیربنه یې پیژني ، ځکه همدغه دشمال ټلواله اوورسره دجنوب څوګوډاګی څېري وي اودي چې دافغانانوترمنځ یې په ځانګړي ډول دادوه لسیزې دبیلابیلو جګړ وتنورونه تاوده وساتل ، له کمونیستانوسره ایتلافونه څه چې بیرته یې په افغانانومسلط کړل ، دشراوفساداوټوپک ماری کلچریې په افغانستان کې رایج وګرځاوه ، دطالبانو دامن اوسکون له داعیي اواسلامي نظام سره یې پنځه کاله جګړه وکړه ، افغانستان یې دامریکاپه شمول د۴۹ هیوادونوداشغال ګیډې ته وغورځاوه ، په ملیاردونو ډالریې دتیرو ۱۳ کلونوپه اوږدوکې چوراوپه بډه ووهل ، زرګونه جریبه دولتي ځمکي یې غصب کړي ، افغان اصیل فرهنګ اودیني ارزښتونه یې په غربیانو ، هندوانواوایرانیانوپلورل اوترټولو خطرناکه لوبه دا چې اوس یې دافغانستان تجزیي ته مټې بډوهلي اوغواړي چې ، دشمال مسلمان ولسونه له جنوب اودجنوب خلک له شمال سره په دښمنیواوتربګنیوکې راګیر کړي .

تاسي وګورى امريکايانو ديوه هغه ګوند (جمعيت اسلامي ) چې دافغانستان په تباهى کې يې تر ټولو زيات رول لوبولى اوافغانان اوپه خاص ډول يې دشمال مومن ولسونه ټول ماهيت ، جوړښت اوموخې پيژني ړومبى يې هغوى ته په يوه کور اوپوي ولسوالى کې يودرځن ګوندونه اوډلې ټپلې جوړې کړې اوبيايې دادى د انتخاباتي ډرامې دمخ بيولوپاره د( ايتلاف انتخاباتي افغانستان ) په نامه يوه ايتلاف ته پراخ تبليغات وکړل چې راتلونکي ټول ټاکني دومره له اهميت څخه ډکې اومهمې دي اوضمناداخبره هم په ډاګه کول غواړي چې که امريکايان له نظامي ډګره پښې سپکوي ، په سياسي ميدان کې لاهم ژمن دي اوخپل تاليځتي داسې يواځې نه پريږدي .

له بل لوري امريکايي خليلزاد په دې هم بسياونکړه اوزړه يې يخ نشو يوبل ايتلاف جوړولو ته يې هم متې بډوهلې چې هدف ترې په عين حال کې دشمال ايتلاف مخالفت اوور سره مقابله ده ، داسې ويل کيږي چې دغه ايتلاف له هغو څيرواو تاليځتوښايى جوړشي چې پښتنو ته منسوب دي ، چې مهم کسان يې (علي احمدجلالي ، احدي ، ارغنديوال ، اتمر ، اشرف غني ) اونور امريکايي راشن خواره دي .

دغه ايتلافونه که هغه له شمالي ټلوالي په وجودراغلي او که دجنوب له امريکايي مزدورانو څخه رامنځته کيږي دوى ټول دافغان ولس دوينو او شتمنيوغليمان اودعزت اوعصمت لوټونکي دي اوپه مجموع کې بيا ټول دامريکايانودګټولپاره تمويل اوګمارل شوي .

مونږ ته جنرال دوستم ، سياف ، محقق ، ارغنديوال ، قومندان عطااواحدي عبدالله عبدالله اوعلي احمدجلالي په خباثت اوله اسلام سره په دښمنۍ کې يوخيل اوديوه خره دوه غوږونه دي ، ځکه داهريوه دامريکااويهودو تر دوغوږونو پوري حلقه بګوش غلامان دي ، هريوپه دې لټه اوفکر کې دي چې څنګه افغانستان دامريکايانو تر اشغال لاندې څوکلونه نورهم تير کړي ، ځکه چې بيادډالرو راشن پرې بنديږي دملت محکمي اوګرفت ته به وړاندې کيږي

دغلامى انتهاته تاسي وګورى چې دشمال اوجنوب ، ټول مهم اجيران دزلمی خليلزاد په يوتليفون له ترکيې ، اروپا ، هندوستان اونوروهيوادونواو کونج کنار څخه څنګه ځانونه رارسوي ، چاته وايي چې تاسي ۱۲ډلې اوټپلې به تردې عنوان لاندې ايتلاف اعلان کړي اونوروته بياداحکم کوي چې تاسې ۱۰ ګوندونه به په دې نوم دموجوديت اعلان کوئ!!

خواوس هغه وخت تيرشوى چې جنرال دوستم ، په سمتي زهرو ، استادسياف په لويه ژيره اوجهادي دعوه ، اشرف غني په امريکايي روڼ اندۍ اوډاکټرعبدالله عبدالله دامير صاحب ! فقيدپه وراثت خلکوته دوکه ور کړي اوپه څوخبرودتيرودولسيزوترسره کړې غدارى له خلکوهيري کړي ،ځکه دوى وتلل شول اوټول خبايث يې برملا اواوس دخلکوپه وړاندې دي دوي دې په دې خبره پوه وي چې داسې يوحقيال اودالله تعالى په دين اواسلامي احکاموټينګ اومتمسک جريان اولښکر راروان دي چې دې هيواداوولس ته به دلوى الله په نصرت ضرورنجات ور کوي اودامريکااونوروطواغيتو د دغوتاليځتوله شر اوکړاونوڅخه به يې خلاصوي اودغه اجير ايتلافونه به په نطفه کې خنثى کوي .




## که دمجاهدینو دوو دلګیو ...

الاستفتاء: که چیري دمجاهدینو دوې ډلي سره مخامخ شي اویوه په بله داسې ګمان وکړي چې دا یرغلګر یادهغوئ ملګري دي ،جنګ وشي اوله یوي بلي خوا څخه څه مجاهدین شهیدان شي نوددغه شهیدانو دیت شته اوکنه اوپه قاتلینو کفاره شته اوکنه ، همدارازدغه شهیدانو ته غسل ورکول کیږي اوکنه ؟ المستفتي محمد موسی کوټه.

الجواب حامدا ومصليا وبعد : په مذکوره صورت کې د امام محمدصاحب رح رایه داده چې په دوئ باندي نه دیت شته اونه کفاره ځکه چې هري ډلي له ځان څخه دفاع کړي ، البته دغه شهیدانو ته دي غسل ورکړي ځکه دوئ دحکمي شهیدانو په حکم کې دي .

لما في رد المحتار ۱\۲۷۰ وفي البحر عن المجتبى إذا التقت سريتان من المسلمين وكل واحدة ترى أنهم مشركون فأجلوا عن قتلى من الفريقين. قال محمد: لا دية على أحد ولا كفارة لأنهم دافعوا عن أنفسهم، ولم يذكر حكم الغسل. ويجب أن يغسلوا لأن قاتلهم لم يظلمهم اهـ ومفاده أنه لو كانت إحدى الفرقتين ظالمة للأخرى، بأن علموا حالهم لا يغسل من قتل من الأخرى، وإن جهل قاتله عينا لكونه مدافعا عن نفسه وجماعته تأمل. وكذا في البحر الرائق ۲\۳۴۵

## که دشهید بدن ترنیمایې کم وموندل شې نو....

الاستفتاء شهید که ترنیمایی بدن [وجود] یې کم وموندل شې نو دجنازي لمونځ یې شته اوکنه ؟ المستفتي محمدنعمان قندهار

الجواب حامدا ومصليا وبعد:که دشهید وجود ترنیمایې زیات وموندل شې یانیمایې وي خوسر ورسره وي یعني دسرخوا وي نوکه حکمي شهید وغسل ورکول کیږي اوبیادجنازي

لمونځ وربانديکول کيږي ،اوکه حقيقي شهيد و ،بيا غسل نه غواړي يوائې دجنازي لمونځ ورباندي کول کيږي . اوکه چيري دشهيد وجود ترينمايې کم و يانيمايې و خود ېښو خوا وه نوبيا يې نه غسل شته اونه هم دجنازي لمونځ .

کمافی درمختارعلی هامش ردمحتار۱\۲۳۴۱ ولووجدرأس ادمی لايغسل ولايصلی بل يدفن الاان يوجد اکثرمن نصفه ولوبلاراس . وکذافی بحرالرئق۲\۳۰۵ ولووجدالاکثرمن الميت اوالنصف مع الراس غسل وصلی عليه والافلا .

## ديوه مجاهدتداوي روانه وه ...

الاستفتاء: ديوه مجاهد زخمي تداوي روانه وه اوروژه يې وه ،ماسپښين دوي بجې ډيرتږی شواوروژه يې ماته کړه نوکفاره ورباندي شته اوکه نه ؟المستفتي ملاعبدالغني خاک افغان

الجواب حامدا ومصليا وبعد: په مذکوره صورت کې په دغه مجاهدباندي کفاره نشته خوقضاءبه راوړی .

لمافي الهنديه:المريض اذا خاف على نفسه التلف اوذهاب عضو منه يفطر بالاجماع وان خاف زيادة العلة وامتداده فکذلک عندنا وعليه القضاء اذا افطر ، ثم يعرف ذلک باجتهاد المريض والاجتهاد غيرمجرد الوهم بل هوغلبة الظن عن امارة اوتجربة اوباخبار طبيب مسلم غير ظاهر الفسق . هنديه۱\۲۰۷ وفي البحرالرائق۲\۴۹۲ لمن خاف زيادةالمرض الفطرلقوله تعالی فمن کان منکم مريضاًاوعلی سفرفعدةمن ايام اخر .

في الموسوعة الفقهية:مادة حرف الصاد الصوم ص۳۱\ فالمريض الذي يخاف زيادة مرضه بالصّوم أو إبطاء البرء أو فساد عضو ، له أن يفطر ، بل يسنّ فطره ، ويكره إتمامه ، لأنّه قد يفضي إلى الهلاک ، فيجب الاحتراز عنه. وفيها بعد اسطر: فإن خاف کلّ من المريض والصّحيح الهلاک على نفسه بصومه ، وجب الفطر. وکذا لو خاف أذىً شديداً ، کتعطيل منفعة ، من سمع أو بصر أو غيرهما ، لأنّ حفظ النّفس والمنافع واجب.

ولما أخرجه الإمام أحمد وابن ماجه عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامت أنّ رَسُولَ اللهِ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قضَى(أنْ لا ضَرَرَ وَلا ضِرَارَ ) وقال-صلى الله عليه و آله وسلم-) إنّ اللّهَ يُحِبُّ أنْ تُؤْتَى رُخَصُهُ كَمَا يَكْرَهُ أنْ تُؤْتَى مَعْصِيَتُهُ) کذافي المشکوة

# ذبیح الله "مجاهد" څوشیبې له خپلولس سره

ښاغلی مجاهد صاحب السلام علیکم !

الله تعالي مو په دغه بې ساري او تاریخي خدمت کي لا موفق ولره ! دغه کو مه لړۍ چي د سوالو نو او ځوابو نو تاسو شروع کړې دا یو داسي کا میابه او تسلي بخشه سلسله ده چي د ډیری افغانانو ذهنو نه یې د اسلامي امارت او طالبانو اسلامي تحریک د اهدا فو په اړه روښانه کړي ،هیله ده چي دغه لړۍ همداسي جاري وساتئ ، زه یو څو سوالو نه لرم امید ده چي په ښه تفصیل یې را ته ځواب کړئ:

۱:ستا سو په سایټ کي موږ هره میاشت دار شاد او دعوت او جلب او جذب را پو رونه ګورو چي په هغه کي ډیر د کرزي په اداره کي ولاړ کسان دهغې اداري را جلاشوي یا په کور کښیناستلي او یاهم د امارت د مجاهدینو سره د ریدلي ځینو اسلحې را وړي او ځیني نور بیا بې اسلحو د امارت مجاهدینو ته تسلیم شوي، زه غوا ړم چي په دې پوه شم چي د دغه کسانو د پاره چي د مخالفته لاس اخلي څه ډول اصول دي څو نور لوستو نکي هم په دې اړه معلو مات تر لاسه کړي ؟

**ځواب** : وعلیکم السلام ورحمة الله وبرکاته ! له تاسو نه هم مننه کوم چې زموږ د لړۍ تعقیبوي او زه مو لا هم تشویق کړم ، ستاسو د پوښتنې په اړه باید یادونه وکړم ،چې د اسلامی امارت زعیم عالیقدر امیرالمؤمنین حفظه الله وپتیله چې د خپل هغه ولس لپاره چې د دښمن لخوا د پیسو ، تمو ، وعدو او نورو شیانو په بدل کې غولول شوی ، د خپل دین ، ولس ، ارزښتونو ،ملي ګټو او هیواد په ضد یې د دښمن طرف نیولي ، له یرغلګرو نه یې حمایت کړي او د مجاهدینو په ضد جنګول کیږي ، د اتمام حجت په توګه او د خپل اسلامی مکلفیت له مخې هغو ته مخکې له دې چې په وړاندې یې جارحانه اقدام کیږي باید لومړی دعوت کړل شي ، ګوندې وي چې الله تعالي یې هدایت په نصیب کړي ، له مرګه وژغول شي ، د دښمن د ګټو لپاره له هلاکته بچ کړل شي او په نهایه کې د الهی اخروی عذابه وساتل شي ،نو یې د دعوت لپاره یو

ځانګړې باصلاحيته کميسيون دارشاد او دعوت جلب او جذب دکميسيون په نامه تأسيس کړ ،چې لله الحمد نو موړي کميسيون په ډېره لږه موده کې وکړای شول ډېر مزل وکړي ، له ګڼو هغو هيوادوالو سره چې په مخالف جهت کې دريدلي تماسونه ونيسي ، هغوي تشويق کړي چې له خپلو دندو لاس په سر شي ، په مسلح يا غيرمسلح شکل ددښمن صف پرېږدي ، خپل ژوند ، خپل راتلونکي او خپل اهل او عيال له مصيبتونو او بدنامۍ څخه وژغوري ، چې همدا سې وشول ، ددغه کميسيون په کمه کاري موده کې دتوقع خلاف په زرګونه کسان دهيواد په بيلابيلو برخو کې دحقايقو په درک سره ددښمن له صفه ووتل ، يا يې عادي ژوند غوره کړ او يا هم عملا دجهاد صف کې ودريدل ، ډيرې وسلې له همدې درکه مجاهدينو ته مهيا شوي او همدا راز ددښمن صف ورسره کمزوری شو ، په منځ کې يې بې اعتمادي خپره شوه، او دنورو هغو کسانو اراده هم ورسره ماته شوه چې لاهم ددښمن په صف کې ولاړ دي ، دارشاد او دعوت جلب او جذب کميسيون ډيرمنظم کاري پرسونل لري ، دخپلو کړونو لپاره يې خورا ارزښتمنه لائحه او طرز العمل جوړ کړی ، دکار اصول يې له شريعت محمدي صلي الله عليه وسلم سره مطابق دعطوفت ، نرمۍ بيا بيا ټينګار او نه ستړيکيدونکو هلو ځلو نه ډک دي ، دټول هيواد دولاياتو او ولسواليو په سطحه يې علماء کرام، پوهان ، قومي مخور او با وجاهته اشخاص په کار ګمارلي ،له خلکو سره يې دليدوکتو طريقه خورا آسانه ده ، هرڅای ته چې اميد ددې وي چې يو چاته به دعوت ورکړل شي ځان رسوي په دې لاره کې سختي ، خطرونه او تکاليف ګالي او دالړۍ دټولو د طمعې خلاف په ډېره چټکۍ سره روانه ده چې صرف د روان کال د جون په مياشت کې يې دهلو ځلو په نتيجه کې (۴۷۹) کسان ددښمن له صفه را ايستلي ، په حقيقت يې پوه کړي او نجات يې ورکړي ، نور هم ډير اميد شته چې په راتلونکې کې به ډيری هغه افغانان ورونه چې الله تعالي يې هدايت په نصيب کړي وي او دخير آينده يې ورته به برخه کړي وي ، دهمدې کميسيون دکار او دعوت په نتيجه کې به ددښمن صف پريږدي او له خپلو مجاهدينو ورونو سره به يوځای کيږي ، دافغانانو خصوصا هغو کسانو لپاره چې غواړي ددښمن صف پريږي ، دمجاهدينو لخوا دژوند کولو اطمنان ترلاسه کړي او يا دخپل ديني مکلفيت له مخې په جهادي بهير کې ونډه واخلي، دهغو لپاره ډير آسانه ده چې زموږ ددعوت دکميسيون غړي پيدا کړي ، او تماس ورسره ونيسي ، په ولاياتو او ولسواليو حتي په اکثروکلو کې چې دهرمجاهد سره تماس ونيول شي هغو ددعوت او ارشاد دکميسيون غړي ورته پيدا کولای شي او په آزاده ، خپلواکه او له مهربانۍ نه په ډکه فضاکې کولای شي خپله انديښنه رفع کړي ،

خپل شک وباسي او دخپل ژوند ، مال او کورني دامن او امان لپاره وعده ترلاسه کړي ، وروسته به بیا په خپل اختیار یا عادي او بې خطره ژوند غوره کړی او یابه هم دلزوم دید سره سم دمجاهدینو سره دهمکار په توګه خپل مکلفیت ادا کړي ، اوکه یې نه غوښتل چې داسلامی امارت له صف سره یوځای شی هم په لیدو کتو کې ورته خطر نشته او کولای شي ددعوت په رابطه ، دامارت په رابطه او دجهاد په رابطه خپل شکونه او سوالونه مطرح کړي وروسته بیا خپل اختیار لري چې څه تصمیم دځان دراتلونکي په اړه نیسي ، کوم اجبار او اکراه به ورباندي نه وي بلکې صرف دښو اخلاقو ، نرمې لهجې او عطوفت دلارې به ورسره برخورد کیږي ، الله تعالی دې ددې کمیسیون د مشرتابه او ټولو غړو په هلوځلو ، عمرونو او کارونو کې لاهم برکت واچوي. مننه

**۲ـ پوښتنه :** په الاماره سایټ کي داقتصادي کمیسون اعلا میه او ادرسونه سته که څوک کو مک کوي په دغو آدرسو نو دي ورسره تماس کي شي، که داقتصادي کمیسون په اړه هم معلو مات را کړئ، ځکه ډیر خلک غوا ړي چي داسلامي امارت دمجاهدینو سره په مالي جهاد کي ونډه واخلي خو په اړه یې پوره معلو مات نه لري ؟ والسلام

پو ښتونکی حاجي محمد

**ځواب** : څرنګه چې مونږ په مخکني ځواب کې هم اشاره وکړه ،چې داسلامی امارت اقتصادي کمیسیون دټول امارت په سطحه یواځني مالي منبع ده، چې دټول امارت لپاره مالي ستونزه حل کوي اوهمدا کمیسیون ده چې دهیواد دننه او بهر دټولو نیکو مسلمانانو ، مخلصو او جهاد پروره افرادو ، تجارانو ، ټولنو او جهتونو نه اعانې او کمکونه را ټولوي او بیا یې په خورا احتیاط ، دیانت داري او امانتداري سره په جهادي امورو کې په مصرف رسوي، ددې کمیسیون ټول مصارف د مشرتابه لخوا منظوریږي او دیوې یوې افغانۍ حساب هم ورکول کیږي ، داکمیسیون خورا ښه کاري ټیم لري او ټولو مسلمانانوته ډاډ ورکوو چې ددغه کمیسیون دلارې ټولې راغلي پیسې به دالله تعالي په لاره کې په جهاد کې په مصرف رسیږي او دکمک کونکو لپاره دمالي جهاد خورا ښه لاره ده ، موږ نور هم له هیوادوالو ، تاجرانو ، بزګرو او په نړیواله سطحه دمخلصو مسلمانانو نه هیله کوو چې داقتصادي کمیسیون دآدرسونو او لارښونو سره سم خپل مالي کمک جاري وساتي. مننه

# ام الفضل (لبابه بنت حارث)
# مادر دانشمند امت و امام تفسیر

در میان پیروان اهل کتاب چنین شایع شده بود که ظهور پیامبری جدید نزدیک شده است. آنچه سبب تأیید و تأکید این شایعات شده بود، این بود که در هر عصری، پیامبری بوده و پیامبران پشت سر هم آمده بودند و در میان آنان، مدت زمانی نبوده که پیامبری نیامده باشد.

فقط آفریدگار عالم، علم و آگاهی کامل بر انسان‌ها و درون و نیات آنان دارد و آن کسی را که می‌خواهد برای هدایت همه عالم بفرستد، چون برای غایت و هدفی عظیم است پس لابد باید، آن کس، انسان عظیمی باشد. قوم عرب در زمان جاهلیت، محمد را انسانی بزرگ و عظیم می‌دانستند و برای سیرت و روش زندگانی وی نهایت احترام را قائل بودند. اما آنان هرگز خیال نمی‌کردند که آینده حیات با آینده محمد ارتباط خواهد داشت و حکمت از دهان او سرازیر خواهد شد و همه جای زمین را در بر خواهد گرفت.

محمد ص امام و پیشوایی از طرف مردم نبود که آنان از وی پیروی کنند و هر جا رفت، دنبالش بروند، بلکه او نیرویی از نیروهای خیر بود و انسانی خوب و صالح در میان آنان بود، اگر چه این نیرو سبب شده بود که او در مرحله‌ای از مراحل تطور و پیشرفت در وجود انسانی، الگو و نمونه باشد. بشر قبل از زمان او تحت سرپرستی و رعایت صاحبانشان بود و به کودکی خردسال و محجور علیه می‌ماند.

سپس کودک بزرگ شد و از بند محجور بودن آزاد شد و برای تحمل سختی‌ها به تنهائی آمادگی پیدا کرد. و خطاب الهی. توسط محمدص. به سوی او آمد تا برایش توضیح دهد که چگونه در زمین زندگی کند و چگونه به آسمان باز گردد. و اگر محمدص بماند یا برود، این امر نقصی در اصل رسالتش ایجاد نمی کند؛ چون رسالت او، مایه باز کردن چشم‌ها و گوش‌ها، و روشن کردن دیده‌ها و ذهن‌ها است. و این امر در فرهنگ غنی‌اش از کتاب و سنت، قرار گرفته است.

محمدص برای این مبعوث نشد تا همه انسان‌ها را چه زیاد باشند و چه کم، پیرامون نام خود جمع گرداند، بلکه او به عنوان رابط میان مردمان و حقی که وجودشان به واسطه آن حق، صحت یافته، و نوری که آنان مقصد خود را به وسیله آن می‌بینند، مبعوث شده است.

پس هر کس در زندگی‌اش حق را شناخته و نوری داشته باشد که با آن در میان مردمان حرکت کند، محمدص را شناخته و زیر سایه پرچم او قرار خواهد گرفت هرچند وجود او را نبینند، و همراه او زندگی می کند: يَا أَيُّهَا النَّاس قَدْ جَاءَكُم بُرْهَانٌ مِن رَبِّكُم وَأَنْزَلْنَا إِلَيْكُم نُوراً مُبِيناً (۱۷۴) فَأَمَّا الَّذِين آمَنُوا بِاللَّه وَاعْتَصَمُوا بِه فَسَيُدْخِلُهُم فِي رَحْمَةٍ مِنْه وَفَضْلٍ وَيَهْدِيهِم إِلَيْه صِرَاطًا مُسْتَقِيمًا) ۱۷۵) (النساء: ۱۷۴-۱۷۵.(

»ای مردم! دلیل روشن از طرف پروردگارتان برای شما آمد؛ و نور آشکاری به سوی شما نازل کردیم. اما آنها که به خدا ایمان آوردند و به (آن کتاب آسمانی) چنگ زدند، بزودی همه را در رحمت و فضل خود، وارد خواهد ساخت؛ و در راه راستی، به سوی خودش هدایت می کند.«

امروز قرار است با صحابیه جلیل‌القدری باشیم که در گرویدن به اسلام، پیشدستی کرده و جزو سابقین است. قلب پاک و صافش و فطرت سلیمش به ندای حق لبیک گفت و به سوی اسلام شتافت و لحظه‌ای تأخیر نکرد. البته صاحبان فطرت‌های سالم در پذیرش خیری که به سوی آن دعوت شده‌اند، تأخیر نمی کنند.

ما قرار است همراه صاحب فضل «ام الفضل» دختر حارث بن حَزن بن بُجَیر، زن هلالی و آزاده، همسر عباس عموی پیامبر ص، و مادر شش پسر نجیب عباس، باشیم.

نام او، لبابه است. او خواهر ام المؤمنین میمونه، و خاله خالد بن ولید و خواهر مادری اسماء بنت عمیس است.

اینک با ما بیائید تا با دل‌هایمان همراه سیرت عطرآگینش باشیم.

## مادر فضائل و بزرگی‌ها

قبل از این که صفحات را برای خواندن زندگانی ام الفضل ورق بزنیم، شما را دعوت می کنیم که لحظاتی در کنار اصل و ریشه پاکی که سیادت و بزرگی آن را احاطه کرده و با مجد و بزرگی از تمامی جوانبش درخشان شده، توقف کنیم. شوهرش، عباس (عموی رسول الله ص (بزرگ و سید بنی‌هاشم است. کسی که به همسایه کمک می کرد و برای رفع نیازمندی‌ها و سختی‌های مردم، مال و دارائی‌اش را می‌بخشید و برهنه را لباس می‌پوشانید و گرسنه را خوراک می‌داد.

پسرش، دانشمند امت و مفسر قرآن، «عبدالله بن عباس» م است.

ام الفضل، غیر از عبدالله، فضل و عبیدالله و قُثَم و معبد و عبدالرحمن و ام حبیبه را برای عباس به دنیا آورد و از میان فرزندانش به «فضل» کنیه گرفت.

عبیدالله بن یزید هلالی راجع به ام الفضل می گوید: ما ولدت نجیبة من فحل بجبل نعلمه أو سهل »هر فرزند نیک دانا همانند کوه یا دشت که ما آن را می‌دانیم، از آن زن نجیب به دنیا آمده.« کسته من بطن أم الفضل أكرم بها من كهلة وكهل» از شکم ام الفضل، پوشیده شده و از سوی زن و مرد خردمندی، مورد اکرام قرار گرفته است.« عم النبي المصطفى ذي الفضل وخاتم الرسل، وخير الرسل»

آن مرد خردمندی که عموی پیامبر مصطفی، صاحب فضل و خاتم و برتر پیامبران است.«

از میان خواهرانش، شریف‌ترین و نجیب‌ترین‌شان، میمونه بنت حارث، ام‌المؤمنین، همسر پیامبر ص است. که آن حضرت در سال ششم هجری با وی ازدواج نمود. میمونه از زنان بزرگ بود. از میان دیگر خواهرانش، می‌توان لبابه صغری، عصماء، عزه و هُزیله نام برد که همگی دختران حارث هستند.

از میان خواهران مادری‌اش هم می‌توان اسماء و سلمی و سلامه دختران عمیس از طایفه خثعمی را نام بُرد .بعضی گفته‌اند که زینب بنت خزیمه هلالی همسر پیامبر ص خواهر مادری آنان بوده است.

ام الفضل خاله «خالد بن ولید « است؛ کسی که پیامبر ص درباره‌اش فرموده: «خالد بن ولید شمشیری از شمشیرهای خداوند است که بر مشرکان کشیده است.«

و ابوبکر درباره‌اش گفته است: «زنان عاجز مانده‌اند از این که کسی مثل خالد را به دنیا آورند». آیا پس از این فخر وبزرگی، فخر وبزرگی دیگری هست؟ وآیا پس از این همه مکارم و فضائل، فضیلت دیگری هست؟

گرامی‌ترین مردم از لحاظ دامادی به مادر ام الفضل آن پیرزن حرشی، گرامی‌ترین مردم از لحاظ دامادی می گفتند؛ چون میمونه همسر پیامبر ص بود؛ عباس با خواهر شقیقی میمونه، یعنی لبابه ازدواج نمود؛ حمزه با خواهر او به نام سلمی ازدواج کرد؛ جعفر بن ابی‌طالب هم با خواهر شقیقش، اسماء ازدواج کرد، پس از جعفر، ابوبکر با او ازدواج کرد و پس از ابوبکر، علی با او ازدواج نمود.

## خواهران مؤمن

پیامبر ص برای ام الفضل و خواهرانش، گواهی داده که مؤمن‌اند؛ آن‌جا که فرمود: «این چهار خواهر: میمونه، ام الفضل، سلمی و اسماء بنت عمیس. خواهر مادری‌شان. همگی مؤمن‌اند.«

این چه شهادت عظیمی است که از دهان انسان راستگوئی خارج شده که از روی هوی و هوس سخن نمی گوید.

## ام الفضل از زنان پیشگام به سوی اسلام بود

وقتی خورشید اسلام بر سرزمین جزیرةالعرب درخشید و وحی بر پیامبر ص فرود آمد، صاحبان دل‌های پاک و فطرت‌های سالم و درست، به سوی اسلام روی آوردند و از بهترین مخلوق، حضرت محمدص پیروی کردند. پس اولین کسی که از میان زنان اسلام آورد، خدیجهک بود. به نظر شما کدام صحابیه جلیل‌القدر، پس از خدیجه اسلام آورد؟

جواب این است: که آن زن، ام الفضل. میهمان گرامی ما. است. امام ذهبی می گوید: گفته شده که از میان زنان، کسی قبل از خدیجه اسلام نیاورد.

سپس ام الفضل اسلام آورد و در مقدمه آن قافله مبارکی بود که خداوند، افراد آن قافله را مدح نموده می‌فرماید: وَالسَّابِقُونَ الأَوَّلُونَ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالأَنصَارِ وَالَّذِينَ اتَّبَعُوهُم بِإِحْسَانٍ رَّضِيَ اللّهُ عَنْهُمْ وَرَضُواْ عَنْهُ وَأَعَدَّ لَهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي تَحْتَهَا الأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ذَلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ (۱۰۰) (التوبه: ۱۰۰).

» پیشگامان نخستین از مهاجرین و انصار، و کسانی که به نیکی از آنها پیروی کردند، خداوند از آنها خشنود گشت، و آنها (نیز) از او خشنود شدند؛ و باغهایی از بهشت برای آنان فراهم ساخته، که نهرها از زیر درختانش جاری است؛ جاودانه در آن خواهند ماند؛ و این است پیروزی بزرگ. «

## صبر و پایداری

به محض این که قریش از اسلام آوردن یاران پیامبر ص مطلع شدند، حملات وسیعی از شکنجه و اذیت و آزار را متوجه آنان ساختند تا از دین‌شان دست بردارند .ام الفضل صحابه را می‌دید که شکنجه و اذیت و آزار می‌شوند، و به خاطر این که کاری از دستش بر نمی‌آمد، گریه می کرد.

وقتی این آیه نازل شد: وَمَا لَكُمْ لاَ تُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللّهِ وَالْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاء وَالْوِلْدَانِ الَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا أَخْرِجْنَا مِنْ هَذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ أَهْلُهَا وَاجْعَل لَّنَا مِن لَّدُنكَ وَلِيًّا وَاجْعَل لَّنَا مِن لَّدُنكَ نَصِيرًا (۷۵) (النساء» .(۷۵: چرا در راه خدا، و (در راه) مردان و زنان و کودکانی که (به دست ستمگران) تضعیف شده‌اند، پیکار نمی کنید؟! همان افراد (ستمدیده‌ای) که می گویند:

» پروردگارا! ما را از این شهر )مکه)، که اهلش ستمگرند، بیرون ببر! و از طرف خود، برای ما سرپرستی قرار ده! و از جانب خود، یار و یاوری برای ما تعیین فرما. «!

مولوي ميرزامحمد ''شکيب''

# دتوحيد علمبرداران

# وحشي بن حرب 

**(( قتل خير الناس بعد محمد...و قتل شر الناس ايضا)) المؤرخون»**

هغه څوک وو چي د حضرت محمد ﷺ تره حضرت حمزه بن عبد المطلب رضی الله عنه يي به شهادت ورساوه، او د نبي کريم ﷺ زړه يي د ده د شهادت له امله ور زخمي کړ، وروسته يي د يمامه په سخته ورځ کي د مسيلمة الکذاب په وژلو د مسلمانانو زړونه يخ کړل.

د ا حضرت وحشي بن حرب الحبشي رضی الله عنه وو ، چي په أبو دسمة سره يادېدی... د ده په اړه يوه غمجنه ، سخته او زړه بوږنوونکې کيسه شته ، ته په خپله نوموړي ته غوږ شه چي دی خپله بدي په خپله درته وااوروي، حضرت وحشي وايي: زه د قريشو د يو سردار حضرت جبير بن معطم غلام وم، د نوموړي تره طُعيمه د بدر په ورځ حضرت حمزه رضی الله عنه په قتل رسولی وو ، حضرت جبير د ده په مړينه ډير خواشينی وو او په لات او عزی سره يي لوړه کړې وه چي د ده قاتل به وژني ، بدله به اخلي... او حضرت حمزه رضی الله عنه ته يي د فرصت شيبې څارلې.

پردې خبره ډير وخت تير نه شو چي قريشو عزم وکړ چي د أحد ميدان ته به وځو ، له حضرت محمد ﷺ څخه به د هغو مړو بدله اخلو چي نوموړي په بدر کي په قتل رسولي وو.

قريشو خپل حليفان راوبلل، لښکر يي منظم کړ او ښه پوره تياری يي ونيو او د لښکر قومنده يي حضرت ابو سفيان بن حرب ته وسپارله.

ابو سفيان وپتيبيله چي له لښکر سره بايد د قريشو ځيني هغه ښځې چي پلرونه ، زامن ، ورونه او ځيني نور خپلوان يي په بدر کي وژل شوي دي ، بايد له لښکر سره يو ځاي کړلی شي، ترڅو د جنګ په ډګر کي د جنګياليو غيرت راوپاروي او د لښکر د ماتيدو مخنيوی وکړي، د دې ښځو په کتار کي يوه هم د ابو سفيان ښځه (هند بنت عتبه) وه چي پلار ، اکا او ورور يي په بدر کي وژل شوي وو ، کله چي لښکر کوچيدی ، ماته جبير بن معطم وکتل او راته ويي ويل: ای أبادسمه ! ته غواړي چي له غلامۍ څخه ځان وژغوري؟ !

ماورته وويل: څوک به مي خلاص کړي؟

ده راته وويل: زه به دي خلاص کړم.

ماورته وويل: څنګه به مي خلاص کړې؟

ده راته ويل: که دي زما د تره «طُعيمه» په بدله کي د محمدﷺ تره «حمزه بن عبد المطلب رضی الله عنه» وواژه ، ته آزاد يي ، ماورته وويل: ته به ماته څوک ضامن راکړې؟ ده راته وويل: چي ستاڅوک خوښ وي اوزه پر دې خبري ټول خلګ ګواهان ګرځوم.

ماورته وويل: زه دا کار کوم...

وحشي وايي زه يو حبشي سړی وم، د حبشو غوندي ويشتل مي زده وو چي هر شئ به مي په نښه کړ بيانه راڅخه خطاکيد ی ، ماهم سمد ستي نيزه راواخيستله له لښکر سره ولاړم ، زه له لښکر څخه وروسته ښځو ته نژدې تلم ځکه زما له جګړې سره نور کار نه ؤ ، د لاري په اوږدو کي چي به کله زه د أبو سفيان پر ښځه (هند ) تيريدم او يا به دا راباندي تيريده او زما په لاس کي به يي نيزه وليده چي لمر ته بربښيده ، دې به راته ويل: ته خپله سينه هم او زموږ سينه هم د دوي په وژلو سړه کړه.... !

کله چي موږ أحد ته ورسيدو او دواړه لښکره سره مخامخ شول، ماهڅه کوله چي حمزه بن عبد المطلب رضی الله عنه پيداکړم ، ما نوموړي پيژندی او دی ، هم دا سي سړه نه ؤ چي له چاڅخه دي ورک شوی وای ، ځکه ده به په سر کي د طاؤس ښکې ټومبلي وې ترڅو خپلو سيالانو ته څرګند وي، دا د زړورو عربو عادت وو چي د جنګ په ډګر کي به يي دا سي کول.

ډير ځنډ نه ووت چي حضرت حمزه رض مي وليد چي د لښکر په مينځ توي شوی وو او خلک به يي په تورو پريکول ، د نوموړي نه چا مخه نيولاي شواي او نه څوک ورته تم کيداي شواي.

کله چي ما تیاری ورته ونیو ، تر درختو او ډبرو ورڅخه پټیدم ترڅو ښه رانژدې شي، په دې وخت کې د قریشو یو سپور چې سباع بن عبد العزی نومیدی ، ورته راوړاندې شو او ورته ویې ویل: ای حمزه ! مبارزه راسره وکړه ... مبارزه راسره وکړه ...

حضرت حمزه رضی الله عنه وړاندې ورغی او ویې ویل: ای د مشرک زویه ! راشه...

ماته راشه... سمدستي یې د توري ګوزار ورباندې وکړ او په خپلو وینو کې یې لت پت کړ.

په همدې وخت کې حضرت حمزه رضی الله عنه ماته دومره رانژدې شو چې ما غوښت، ماهم خپله نیزه ورته برابره کړه چې ښه مې باور شو چې نه خطا کیږي، وار مې ورباندې وکړ تر نامه لاندې مې وویشت او د شا خواته یې ووته ، ده زمالور ته دوه درې قدمه ډیر په تکلیف سره راواخیستل اوبیا پر مځکه ولوید ، نیزه یې په تن کې ښخه وه ماتر هغو نیزه په کې پریښوده چې څو مې د ده په مړینه باور شو بیا ورغلم نیزه مې ورڅخه راوکښه ، خیمو ته راغلم او کښیناستم ، له بل چاسره مې کار نه وو ، دی مې د ځان د آزادی له امله شهید کړ.

د جګړې تنور ښه تود شو ، خرپ او ترپ پیل شو ، د محمد ﷺ ملګري محاصره او ډیر ملګري یې ووژل شول ، په همدې حال کې هند بن عتبه د مسلمانانو پر مړو وګرځیده له شا نوري ښځې ورپسې وې ، دې د مړو اندامونه پریکول، او د مړو نسونه یې ورڅیري کړل، سترګې یې ور و ایستې ، پوزې او غوږونه یې ورپرې کړل

وروسته یې د دوی د پزو او غوږونو څخه ځان ته غاړګۍ او غوږوالې جوړ کړل او د ځان د سرو زرو غاړګۍ او غوږوالې یې ماته راکړل او راته ویې ویل: ای ابادسیمه !دا دواړه ستادي؟

دا دواړه ستادي ، ځان پرې وساته ، داډیر لوړ بیه دي.

کله چي په أحد کې جګړه پای ته ورسیده زه له لښکر سره مکې ته راستون شوم ، جبیر بن معطم په خپله وعده وفا وکړه او زه یې آزاد کړم.

د حضرت محمد ﷺ خبره ورځ په ورځ ګرمېده مسلمانان ورځ تر بلې زیاتیدل، څومره چي حضرت محمد ﷺ مخ په وړاندې تلو دغومره زیاته پر مامځکه تنګیده اوزه پر ځان ډاربدم ترڅو چي حضرت محمد ﷺ له خپل لښکر سره مکې ته داخلیدی زه ډاربدم

# جنګي جنایتونه (اګست)

سید سعید

د روان (۲۰۱۳ز،) کال د اګست پر ۴مه نیواکګرو ځواکونو د میدان وردګ ولایت د مرکز مربوط په کهنه خمار سیمه کې د ملکي هیوادوالو په کورونو چاپه وهلې ، خلک یې وهلي او ځورولي او په اخر کې یې له کورنو څخه نغدي پیسې او ګڼې له ځان سره وړي دي.

د اګست پر ۵مه اشغالګرو ځواکونو د کندز ولایت د امام صاحب ولسوالۍ د زنګ سه کپرک سیمه کې د خلګو پر کورنو یرغل کړی ، د تلاشي پر مهال یې خلګو ته مالي تاوانونه رسولي او اتلس تنه ملکي هیوادوال یې بندیان کړي دي.

د اګست پر ۷مه د زابل ولایت د شینکۍ ولسوالۍ په صدوخان کلا سیمه کې د قوماندان شیر محمد زوی نیک یو کلیوال (محمد ) چې له هیڅ طرف سره یې ملګرتیانه درلوده په خپل کور کې د ننه شهید کړی دی.

د اګست پر ۷مه اشغالګرو عسکرو د بغلان ولایت د برکه ولسوالۍ په تنګي مرچ سیمه باندې چاپه وهلې ، او د کورونو د تلاشۍ پر مهال یې درې تنه ولسي وګړي د بندیانو په توګه له ځان سره وړي دي.

د اګست پر ۷مه اشغالګرو عسکرو د شپنیو عملیاتو په لړکې د ننګرهار ولایت د چپرهار ولسوالۍ په دولت زي سیمه باندې یرغل کړی ، څلور تنه ولسي وګړي یې بندیان کړي او د تلاشۍ په ترځ کې یې د کورنو څخه ګڼې او نغدي پیسې هم له ځان سره وړي دي.

داګست پر۱۰مه داخلي عسکرو د کابل ولایت د ده سبز ولسوالۍ په اخپلندي کلي کې ملا امام د دوو کلیوالو سره بندي کړی دی.

داګست پر۱۲مه رسنۍ خبرورکوي چي :دفراه ولایت د بالابلوک ولسوالۍ دکنج اباد په سیمه کي اربکیانو او پولیسو د طالبانو سره په سیمه کي ترجګړې وروسته ملکي وګړي په نښه کړي چي په ترڅ کي یې یوه میرمن شهیده شوې او څلورنورې ښځي او پنځه تنه ماشومان سخت ژوبل شوي دي.

داګست پر۱۵مه نیواکګرو پوځیانو د غزني ولایت دواغظ ولسوالۍ دخندقي پرکلي چاپه وهلې ،دګڼو کورونو دروازي یې په بمونو الوزولي اویوزیات شمېر کلیوال یې له شکنجه کولو وروسته بندیان کړي دي.

داګست پر۱۲مه دپروان ولایت د کوه صافي ولسوالۍ په ډنډرکلي کي یرغلګرو د چاپې په ترڅ کي در ې تنه ولسي وګړي اسیران کړ ي د ي.

داګست پر۱۷مه داروزګان ولایت دخاص اروزګان ولسوالۍ په بازراکي ولسي خلګو د کابل اداري اړوند مشهورقوماندان (حکیم شجاعي )پرضد مظاهره وکړه ،مظاهره کونکوویل چي:«درې ورځي وړاندي دیادي شوي ولسوالۍ دکوچک په سیمه کي دشجاعي په مشري اربکیانو دیوې ماشومي په ګډون دوه تنه ملکي وګړي شهیدان کړي ترپنځوس تنه زیات ولسي هیوادوال یې شکنجه کړي ،کورونه یې ورچورکړي ،اودباغونوونې یې ورکښلې دي».دغه رازدشجاعي اربکیانوددغي ولسوالۍ دعشري ناوې په سیمه کي هم ملکي هیوادوال ځورولي او شکنجه کړي ،ډیرکورونه یې چورکړي اولس دوکانونه یې له چورکولو وروسته سوځولي هم دي.

داګست پر۱۸مه اربکیانو دزابل ولایت د سیوري ولسوالۍ دپتلاخیلو دکلي ملاامام دبیلچو په وهلو سره شهید کړی دی.

داګست پر۱۹مه اشغالګروعسکرو دشپنیو عملیاتو په لړکي دبغلان ولایت د پلخمري ولسوالۍ دډنډغوري په احمدزیو کلي کي دعاموخلکو پر کورونو چاپه وهلې ،دتلاشي پرمهال یې خلګوته مالي زیانونه اړولي او پنځلس تنه ملکي هیواوال یې له ځان سره بندیان کړي دي.

داګست پر۱۹مه خارجي او داخلي عسکرو د زابل ولایت د شاجوی ولسوالۍ په ډېرو کلیو ( دغره لودین ،ګوډۍ ،سریزي ،خواجک ،پاسني او ایخاب )یرغل کړی ،ډېر خلګ یې شکنجه کړي او بیا په خپله مخه تللي دي.

داګست پر۲۰مه د میدان وردګ ولایت د سید اباد ولسوالۍ په اونخي سیمه کې یرغلګرو دچاپې په ترڅ کې یو ملکي وګړی (عبد الله )شهید کړی ،دغه رنګه دهمدې سیمې په حکیم خیلو کلي باندي هم اشغالګرو چاپه وهلې ،دتلاشي پر مهال یې خلګو ته زیات مالي زیانونه اړولي او بیا یې د عبد الوهاب په نامه یو کلیوال په برچو وهلی او سخت ټپي کړی دی.

داګست پر۲۱مه نیواکګرو د کندهار ولایت د میوند ولسوالۍ په کلاښامیر کې دحاجي عبد الخالق پر کور دچاپې پر مهال پنځه تنه ولسي وګړي بندیان کړي دي.

داګست پر۲۲مه د زابل ولایت دشاجوی ولسوالۍ اړوند دجعفرو په کلي کې یرغلګرو عسکرو د مدرسې یو طالب العلم لومړی په سپیو داړلی او بیا یې په شهادت رسولی دی.

داګست پر۲۳مه د غور ولایت ددولینه ولسوالۍ په مربوطاتو کې اربکي ملېشو ددرې ورځني عملیاتو په مهال ۱۵۰کورنۍ له خپلې سیمې څخه شړلي او دهغوی کورونه یې چور کړي ،د سیمه ییزو خلګو ۲۰۰ غوایي، ۷۰۰ پسونه، ۲۰ عرادې موټرسایکلونه یې له ځان سره وړي او۱۲ دوکانونه یې له چور کولو وروسته سوځولي دي.

داګست پر۲۴مه د کندهار ولایت د پنجوایي ولسوالۍ دزنګاوات په سیمه کې اربکیانو دخانانو د کلي ملاامام تښتولی وچې ،خوورځې وورسته یې په یوه خالي کور کې مړی و موندل شو.

داګست د۲۵مي په ماښام اشغالګرو عسکرو د لوګر ولایت د برکي برک ولسوالۍ په کال وچ سیمه کې د ملکي خلګو پر کورونو دچاپې په ترڅ کې دوه تنه ملکي وګړي بندیان کړي دي.

داګست پر۲۶مه د لوګر ولایت دبرکي برک ولسوالۍ په کوتیخیل سیمه کې یرغلګرو دچاپې پر مهال یو۸۵ کلن سپینږیری هیواد وال (رسول داد کاکا )شهید کړی دی.

داګست پر۲۶مه د غزني ولایت د ده یک ولسوالۍ په سنګر کلي کې اربکي ملېشو یو ولسي وګړی ( محمد غني ) شهید کړی دی.

داګست پر۲۲مه دکندزولایت دخان اباد ولسوالۍ په مرکزي سیمه کي داربکي قوماندان (عمر)زوي اوساتونکو یې یوملکي وګړی شهید کړی دی.



داګست پر۲۷مه دکنـــــدهارولایت دغــورک ولســوالۍ دویشتان کلي تـه ګنې شمیریرغلګردعملیاتوپه نامه ورغلي ،زیات شمېرملکي خلک یې شکنجه کړي اوپه اخرکي یې پنځه تنه ولسي وګړي بندیان کړي دي.

داګست پـر۲۷مـه دجلال ابادښـارارونددخالص بابافـامیلیوکې اشغالګرود حـاجي دادو کوربانـدي چاپـه وهلـې ،یرغلګرودنومـوړي پـه کـورکي څـه خطرې تـوکي نـه دي مونـدلي ،خوحاجي دادویې ددووزامنو ( عتیق الله او اکرام الله) پـه ګډون لـه ځان سره دبندي پـه توګـه بیولي دي .

داګست پر۲۸مه ماښام اشغالګرودهلمندولایت دنوزادولسوالۍ داورموزکاریزپه سیمه کي دچاپې پرمهال یوولسي وګړی شهید کړی دی.

داګست پـر۲۹مـه یرغلګروځواکونـود پکتیاولایت د سیدکرم ولسـوالۍ پـه عثمـان خېـل سیمه کي دملکي خلګوپرکورونولومړی چاپه وهلې اوبیـایې بمبـارېرې کـړې چي لـه املـه یـې درې تنه ملکي هیوادوال(دیني عالم مولوي خلیل له خپل ورور او یو تن کلیوال سره )شهیدان شوي دي.

مأخذونه:[بي بي سي راډیو ،ازادي = ،افغـان اسلامي اژانس ،پـژواک ،روهي ویبپاڼـه ،لراوبر= ،نن ټکی اسیا=اوبینوا=]



# دهلمند دشهيد روزونکي ولايت پوځي او اداري وضعيت

ميوند سادات

درنو لوستونکو !

دافغانستان داسلامي امارت نظامي کميسيون داسلامي امارت دمشرتابه په دستور په هيوادکي دمجاهدينو دجهادي فعاليتونو دنظارت او څارنې او دمجاهدينو تر واک لاندې ساحوکې دهغوئ اداري او ملکي چارو دانسجام او تنظيم لپاره دهيواد ټولو ولايتونو ته باصلاحيته هيأتونه تعين او استخدام کړي.

اسلامي امارت غواړي چې دټول هيواد په کچه ددغو توظيف او استخدام شويو هيأتونودکاري رپوټونو او دهغوئ دمشاهداتو او ارزونو په اساس دهيواد دپوځي او اداري چارو دلاترتيب او تنسيق لپاره داسې تدابير او تصميمونه په کار واچوي چې دهغوئ په وسيله جهادي صف لا غبنتلی ، پياوړی او منظم شي ترڅو وکولای شو دالله تعالی په نصرت او دهمدغه منظم ، مستحکم او يوموټي جهادي ځواک په وسيله خپل هيواد داشغالګرو له واکمنۍ څخه داسلام دسپيڅلي نظام دحاکميت لپاره آزاد او خپلواک کړو.

په نظرکې ده چې د دغو توظيف شويو پلاويو دکاري رپوټونو هغه برخې چې په هيواد کې دجهادي او اداري فعاليتونو موفقيت پکې منعکس او کوم پوځي محرميت ونه لري په مسلسله توګه دالاماره ويب پاڼې او داسلامي امارت د اړونده رسنيو له لارې له خپلو مجاهدو هيواد والو سره هم شريک او نشرشي.

په هيوادکې دمجاهدينو تر واک لاندې ساحو کې دپوځي او اداري فعاليتونو دڅارنې او ارزونې لپاره ددغو توظيف او استخدام شويو هيأتونو دراټول کړيو رپوټونو په سلسله کې مو

داخلي په جنوب لويديځ زون کې د هلمند ولايت لپاره د تاکل شوي هيأت د غړيو هريو محترم (مولوي صاحب محمد مصطفی او مولوي صاحب عبد القيوم د ترتيب کړي رپوټ نشرولو ته نوبت ورکړی چې نو موړيو ورونو د خپل وظيفوي مسؤليت په مهال د ياد ولايت د مجاهدينو نظامي او اداري فعاليتونو او په هغې کې د ماتې خوړلي دښمن له لوري د ګڼو سيمو د تخليې او هالته ورکې د مجاهدينو د واکمنۍ په اړه توضيحات ليکلي.

راځئ چې د هلمند د شهيد روزونکي او دښمن ځپونکي ولايت پوځي او اداري وضعيت د دې رپوټ په ترڅ کې په ګډه سره ولولو.

## دلوي څښتن په ښکلي نامه !

د هلمند ولايت که د بشري او طبيعي جغرافيې له مخې ډير مساحت او زيات نفوس لري له نظامي پلوه هم خورا ستراتېژيک اهميت لري، د دې ولايت دلاندې کولو لپاره برتانوي او امريکايي يرغلګرو ځواکونو د پر مختللي ټيکنالوژۍ، وسلو، پيسو او داخلي مزدورانو په مټ ډيرې هڅې وکړې خو هر څه يې د خدای جل جلاله په فضل په اوبو لاهو ل شول.

مونږ د هلمند ولايت په حاصلخيزه مځکو، وچو دښتونو او ريګونو کي د صليبي يرغلګرو په خلاف د سربندونکو غازيانو او اتلو شازلميانو د جهادي شهکارونو او حماسو ډيرزيات يادګارونه وليدل، په بيلابيلو سيمو کي مود قهرمانو مجاهدينو له لوري د دښمن د سوځول شوو اکمالاتي کانټينرونو او ټانکرونو، په ماينونو ټوټه ټوټه شوو ټانګونو، زغره والو ګاډو، رينجرونو او مختلف النوعه نقليه وسايطو ننداره وکړه چې د سړک يوه او بله خواليري او نژدې پاش پاش پراته وو.

د اسلامي امارت د نظامي کميسيون د پوځي تشکيلاتو له مخې په هلمند ولايت کې ۲۰۰۰۰ شل زره مسلح مجاهدين فعال دي چې روزمره پرمورال بايللي دښمن د خرپ وترپ حملې کوي، د دښمن د تګ راتګ په لاروکې ماينونه خښوي، کمينونه ورته نيسي او په مختلفو ساحو کي د جګړې له لومړيو کرښو (کمربندونو) څخه دفاع کوي.

سربيره پردې د جهادي خطوطو څخه د دښمن څارنه کوي او د موقع څخه په استفاده تکتيکي حملې ورباندي کوي. په هلمند ولايت کې له جهادي محاذ څخه زمونږ د مشاهداتو په مهال به چي مونږ د مجاهدينو څخه د وضعيت پوښتنه کوله دوئ به د کمربند او خطونو يادونه

کوله مونږ فکرموکاوه چې هسې به يوځای دوې درې پوستې اومورچې وي دوئ به دکمربند اصطلاح ورته کاروي بالاخره دکمربندليدلوته ولاړوکه ګوروچې هالته سم دم له يرغلګرو ځواکونوسره دمقابلې په ډګرکې مجهزې پوځې کرښې ايجادشوې چې ډيرې زياتې سيمې يې احاطه کړې اودواړوطرفونو په لسهاوومورچې اوخزې پکې جوړې کړې وې ،دورځې اوشپې پيرې پکې کيدلې ،همداډول کمربندونه په يوه ولسوالۍ کې نه بلکې په مختلفوعلاقواوولسواليوکې موجودول چې دنمونې په توګه يې د سنګين ،واشير،زميداور، نادعلي ،اوکجکي ولسواليو پوځې کرښې يادوو.

چې ددغو پوځې خطونو له جملې څخه داسې خطونه هم ول چې دتېروپنځوکالوراهيسې مجاهدين همالته ځاې پرځاى او د دښمن دبې شمېره هوايې او ځمکنيو بريدنو له شدت سره سره يې هغه تر خپلې ولکې لاندې ساتلې ول.

له مجاهدينو سره دولس همکاري ډيره زياته وه هغه کليوال چې د دوئ په سيمه کې ددښمن دپوځې مرکزونو له امله مهاجرت ته اړشوي او کورونه يې تخليه کړى ول ،هغوئ ټول له دښمن څخه دانتقام په خاطر دمجاهدينو ترڅنګ ولاړ او له هغوئ سره يې پوره مرسته کوله وه دکمربند په ساحوکې مودهغوولسې خلګوڅخه چې خالي کورونه يې په همدې سيمه کې وو وپوښتل چې دجګړې لومړيو کرښوبه ستاسوژوندډيرتريخ کړى اوله کړاونوډک کړى وي !دوئ داسې ځواب راکړچې ټول يې حيران کړو.

دلته يوولسي سپين ږيرى ووچې خبرې موورسره کولې نوموړي زموږدياډې پوښتنې په ځواب کې وويل چې: يرغلګر دښمن زمونږ په کليوالو سيموکې پوځې مراکز جوړ کړل چې له امله يې مونږ دسيمې پرېښودلو ته مجبورشولو او اوس يوائې دخپلو کورونو اوزراعتي حاصلاتودساتنې لپاره له هرو پنځو او لسو کورونوڅخه يوتن دلته دمحافظت په خاطر اوسو.

دښمن زمونږ کليوالې سيمې په پوځې سيموراته بدلې کړې ، خو مجاهدينو په خپلو عملياتو سره اوس زمونږ همدغه کليوالې سيمې په ډيره اندازه سره دددښمن له واکمنۍ خلاصې کړې او الحمد لله تر ډيره حده يې ددښمن له تسلط او دهغوئ دشپنيو عملياتو اوچاپو له شره بيغمه کړي يو.

اوس مونږ خپله هم له مجاهدينو سره په ګډه ددښمن په پوځې مرکزونو بريدونه کوو او هغوئ نه پريږدو چې زمونږ کليوته راشي.

که مجاهدین زموږ پراوږوباندي ټوپک راکښېږدي او پردښمن باندي ټکان کوي هم یې دځان لپاره افتخاربولو ،مجاهدینو ته همیش وایو چي دښمن په قراره مه پرېږدئ یوازي داځیني غواړوچي کله پردښمن دحملې کوي موږخبرکړي چي خپل کوچنیان خوندي کړوځکه دښمن موږاوتاسوته په یوه سترګه ګوري زموږپه مال اواولادهم صرفه نه کوي ړانده هوانونه راغوځوي چي دځاني تلفاتو سربیره کورونواومالونوته موزیان رسوي ».

په کمربندکي یوسپین ږیري مجاهد کیسه راته کوله چي درې ساعته مي پرله پسې ددښمن مورچې څارلې چي که څه حرکت پکي ولیدل شوګوزاربه ورباندي کوم خوترپایه مي ددښمن څه حرکت ونه لید یعني دښمن مورال داسي بایللی دی چي یوازي په خپلو قرارګاووکي ګوزاره لویه لاسته راوړنه ګڼي ،مجاهدین نږدې ورشي بریدونه ورباندي وکړي بیرته ترخپلو سنګرونوپوري ځانونه راورسوي خوددوئ له خواکوم پام وړغبرګون نه ترسترګو کیږي.



په نهرسراج کي په یومانده کي دکابل اداري داردوپر موټریزکاروان باندي پیښ شولوډیروارخطااوترهیدلي معلومیدل موږهم موټرودراوه که ګوروچي دهاخوا دملکي خلګود سپرلۍ یوبل موټراغلی کیسه موځیني وپوښتل ویل یې چي طالبانودوه درې ډزه پروکړل ټول کاروان یې ایسارکړګوره چي هغوئ به اوس دلته وي کنه خودوئ(اردو ) دورتګ زړه نه شي کولای ، دلته په نهرسراج کي دیرغلګرویولوی بیس و چي دخړپه قرارګاه مشهور ومجاهدین څه ځیني تنګ هم ووخودخدای جل جلاله نصرت وه چي همداخړقرارګاه دشمن تخلیه کړه مجاهدین ډیرزیات ورته خوشحال وو ،ویل چي:« یرغلګروکډي بارکړې پاته شوني یې (دکابل اداري اجیراردواواربکیان ) هیڅ هم نه شي کولای که خدای جل جلاله کول یابه پښې سپکوي یابه سرونه بایلي ».

دهلمند ولایت مجاهدین مېلمه پال ،بااستقامته ،مطیع او مینه ناک خلک وو موږ یې تقریبا د دغه ولایت پرټولو ولسوالیو وګرځولو له خپلو موفقیتونو او ستونزو یې خبر کړو ،د مشرتابه څخه ډیرخوشحال وو ،چي د وضعیت د معلومولو په موخه پلاوي ورته لیږي او وخت پروخت لازمي سپارښتني او هدایات ورته کوي.مجاهدینو په خپل منځ کي ډیرښه اتفاق درلود چي پریوه سیمه به د ښمن یرغل وکړ نو رو مجاهدینو به یې د غوښتني څخه پرته د خپلو مجاهدینو مرستي ته وردانګل ، د مجاهدینو څخه موو پوښتل چي که په بله سیمه کي مجاهدین د د ښمن سره لاس وګریوان شي تاسي همکاري ورسره کوئ !دوئ ویل چي ولي نه !چي د کومک غوښتنه راڅخه ونه کړي مرستي ته یې ورځو خو که همکاري راڅخه وغواړي بیا خو بیخي که دو شپې وي که دورځي د خپلو مجاهدینو ملاتړ ته ورځو.

په ټوله کي د هلمند ولایت وضعیت کاملا د مجاهدینو په ګټه او دیر غلګر د ښمن او داخلي ګوډاګیانو په زیان دی ،دباغران او بغني ولسوالی په یو مخیزه توګه حتی دولسوالیو د مراکزو په شمول د مجاهدینو په واک کي وي او د پاته نو رو ولسوالیو د مراکزو د دانیو څخه پرته زیاتره سیمي یې د مجاهدینو تر ولکې لاندي وي د دغه ولایت په مختلفو ولسوالیو کي مو پرله پسې په ساعتونو ساعتونو په موټر کي مزلونه وکړل خو د د ښمن د وجود څرک هم نه پکي لګیده، په ځینو سیمو کي چي د ښمن څه ناڅه شتون درلود پوستې مو یې له نژدې ولیدې د ښمن دومره وار خطا وو چي صرف ځان ساتني ته یې لو مړیتوب ورکاوه نوریې په دې سر نه ګرځاوه چي مجاهدین څه کوي او چیري ځي. په مفتوحه سیمو کي نه یوازي مجاهدینو ځي تحرکات درلودل بلکي ملکي اداري هم فعالي وي په تېره قضایي ارګان ډیرزیات فعال وو خلګو خپلي ستونزي او دعوې همدې ارګانونو ته راجع کولې او د اسلامي شریعت په رڼا کي یې د خپلو ستونزو حل ترلاسه کاوه.

لنډه دا چي په رسنیو کي چي وضعیت څه ډول تشریح کیږي واقعیت بیخي برعکس و د اسلامي امارت مجاهدین په پوځي او ملکي چارو کي ډیرښه فعال ول،ولس یې له کړنو څخه خوشحال او پوره ملاتړیې کاوه او د ښمن بیا ډیرزیات خوار او کمزوری و ،ټولي هڅي او حربې یې ناکامې شوي او دژوند ساحه وربا ندې تنګه وه.

# د غزني فدايي بريدونو کې ۱۰۹ بهرني اوکورني دښمنان قتل ګڼ ټپيان ، ۲هليکوپتر، ۶ټانکونه او ۲۰ موټرويجاړ شول

دخالدبن وليد دعملياتو په لړ کې هغه بريدونه چې تيره ورځ مازديګر ۴ ځلوربجې د غزني ولايت په مهم خارجي مر کز (پي آر ټي ) باندي د ۱۳ تنو سرښندونکوفداييانو لخوا پيل شوي وو د شپې تر ۱۲ بجو يې په شدت سره دوام وموند . دغه ۸ ساعتيز بريدونه په لومړي سر کې د دوو لاري موټرو په وسيله چې دواړه له منفجره موادونه ډکې وې پيل شول ، يوه موټر دپي آر ټي نظام قراول او امينتي پوستې او خوب خوني له منځه يوړي او دوهم موټر دپي آر ټي څنګ ته د داخلي مزدورو عسکرو دقرار ګاه نظام قراول په نښه کړ ، وروسته ۹ تنه فدايي مجاهدين وتوانيدل چې دپي ار ټي انګړ ته ننوځي او داستخباراتي معلوماتو دفتر ، د توپچې برخه ، دولاړو څرخکو تم ځاى يو وسلتون او ډيپو او نور تأسيسات تر کلکو او ويجاړونکو ګوزارونو لاندي ونيسي ،دبريد له پيل نه لږ وروسته ۲ بهرني هليکوبترې هم په پي آر ټي کې کيښناستي چې سم لاسي د ګوزار لاندي ونيول شوي او له سپر لي سره له منځه لاړي ، دبريدونو په لړ کې چې ۸ ساعته روان وو دښمن دسر او مال درانه زيانونه وليدل ، وروستي او کره معلومات ، دفداياونو دتليفوني اړيکو ، سيميزو خلکو او خاصو راپورونو په اساس څر ګندوي چې ۷۸ تنه بهرني افسران اوعسکر او ۲۱تنه کورني عسکر، جاسوسان او کارمندان دپي آر ټي په دننه او د کورني عسکرو په قرار ګاکي وژل شوي او ګڼ شمير نور ټپيان شوي دي ، څرخکي ، ۲۰ عرادي موټر ۶ زغروال ټانکونه مکمل ويجاړ شوي ، ودانۍ ، وسلتون او نور تأسيسات هم تر ډيره بريده تخريب شوي ،ددغو بريدونو دحمايي لپاره يوه دوهمه ۱۵ کسيزه ډله دفاعيي مجاهدين هم له بهر خوا څخه دپي آر ټي امينتي پوستي تر بريد لاندي ونيوي چې ۲ پوستي يې فتحه کړي ۱۰ عسکر يې پکي ووژل او يو رينجر موټر يې له ګڼو وسلوسره په غنيمت ونيو .دبريد په پاى کې زموږ ۱۱ تنه فدايي مجاهدين او ۴ تنه دفاعي مجاهدين هم شهيدان شول ( تقبلهم الله) او ۱۱ تنه دفاعي مجاهدين بير ته وتوانيدل چې له سيمې نه راووځي .

داسې بريدونه چې دې وروستيو کې يې شدت موندلى ښيې چې مجاهدين په زرو کولاى شي چې اشغالګر تيښتې ته اړباسې اوددوئ په ګوتوجوړه شوي اداره چې اوس هم لا دتزلزل په حال کې ده له نورې ولسي بې باورۍ سره مخ کړي .

۲۲/۱۰/۱۴۳۴هق

۱۳۹۲/۶/۷هش-۲۹/۸/۲۰۱۳م

# دعوت او ارشاد

## د دعوت ، ارشاد، جلب او جذب کمیسیون د (اګسټ) د میاشتې تفصیلي راپور

دروان (۲۰۱۳ م )کال داګست په میاشت کي هم د تېرو میاشتو په شان د اسلامي امارت د دعوت ،ارشاد ،جلب او جذب کمیسیون په هڅو او د ځایي مجاهدینو په ملاتړ د افغانستان په مختلفو ولایاتو کي ۷۲۷تنه چي د کابل اداري اړوند بیلا بیلو ارګانونو کي په کاربوخت وو د حقایقو په درک کولو د دغه فاسد رژیم څخه راووتل او د اسلامي امارت د مجاهدینو سره یوځای شول.

داګست پر لومړۍ نیټه د لغمان ولایت په مختلفو سیمو کي ۱۰تنه او د هرات په کروخ ولسوالۍ کي ۳تنه ،میدان وردګ ولایت کي ۱تن اربکی ،او د پکتیکا په ښرنه کي ۲تنه عسکر د ښمن له لیکو څخه راجلا او مجاهدینو سره یوځای شول.

داګست پر۲مه نیټه د ننګرهار په روداتو کې ۳ تنه عسکر ،د پکتیکا په یحی خېل کي یو اربکي قوماندان له یو ساتونکي سره ،او د فاریاب په ګریزوان ولسوالۍ کي ۳تنه عسکر د مجاهدینو سره ملګري شول.

داګست پر۳مه ننګرهار روداتو ولسوالې کې۱تن عسکر،پکتیکا متاخان کي۱اربکی له مجاهدینو سره یوځاي شو.

داګست پر۴مه د بدخشان راغستان کې۱عسکر،

د ننګرهار ولایت د چپرهار ولسوالې کې۱تن ،او د کندهار په غورک ولسوالۍ کي ۳عسکر ،د پکتیکا جاني خیل کې ۳ پولیس او یحی خیل کې۲ اربکیان له مجاهدینو سره یوځای شول

داګست پر۵مه د هرات په شیندډنډ کي۱اربکی چي ۳تنه ابکیان یې قتل کړي و ،او د ننګرهار د اچین ولسوالې د باندرکلي او سپدونکی(تورن رازمحمد ) د اسلامي امارت مجاهدینو سره یوځاي شو.

داګست پر۲مه د پکتیاد زرمت ولسوالې کې ۴پولیس او د فراه په بالابلوک کي ۱دارد و عسکر د مجاهدینو سره ملګري شو.

داګست پر۷مه دهرات دشين ډنډ ولسوالي کي ۲تنه د اسلامی امارت له مجاهدينو سره يوځای شول.

داګست پر۸مه دکندهار ولايت دغورک ولسوالي کي ۱اربکی له مجاهدينو سره ملګری شو.

داګست پر۹مه دفارياب ولايت دقيصار ولسوالی کي ۳تنه اربکيان له اسلامی امارت سره يوځای شول.

داګست پر۱۰مه دهلمند ولايت دخانشين ولسوالي کي ۱تن اربکی له مجاهدينو سره يوځای شو.

داګست پر۱۱مه د لوګر دکجې دکلي څلور تنه او سيدونکي چي اربکيانو کي يې کارکاوه له مجاهدينو سره يوځای شول، دغه راز دفارياب ولايت دقيصار ولسواليکي ۸تنه پوليس له فاسدی اداری راجلاشول او د اسلامی امارت له مجاهدينو سره ملګری شول.

داګست پر۱۲مه د جوزجان په قرقين کې ۱۹ عسکراو پوليس، دهلمند ولايت دمارجی ولسوالی کي ۲تنه اربکيان او پکتيکا خيرکوټ ولسوالۍ کې ۱تن اربکی له مجاهدينو سره يوځاي شو.

داګست پر۱۳مه د پکيتا سيدکرم کې ۴عسکر، د لغمان عليشنګ کې ۱عسکراو۱اربکی له درې ميله وسلې سره،

دفارياب ولايت دقيصارولسوالي کي ۲تنه، اودهلمند په هزاجفت کي ۱ عسکر دمجاهدينو سره ملګري شول.

داګست پر۱۴مه د لغمان دولت شاه کې ۵ عسکر، دننګرهارپه شيرزادو ولسوالي کې ۱۵ تنه عسکر، دکندهار دډنډ ولسوالی کي ۱تن چي په سکوټيانو کي يې کارکاوه او دهلمند دګرشک ولسوالي کي ۱تن عسکرله فاسدي ادارې څخه راجلااو دمجاهدينو سره ملګري شول.

داګست پر۱۵مه د پکيتا په سيدکرم کې ۱ پوليس، دننګرهار ولايت د هسکې مېنې ولسوالې کې ۱۲ تنه عسکراو

دباداغيس ولايت دمرغاب ولسوالي کي ۲تنه عسکر او پکيتکاجاني خيل کې ۳۳عسکرد افغانستان اسلامي امارت له مجاهدينو سره يوځای شول.

داګست پر۱۲مه د تخار په اشکمش ولسوالۍ کې ۳ عسکر، دپکيتا احمدابادکي ۲عسکر، دروزګان ولايت چورې ولسوالۍ کي ۱تن، دهلمند په سنګين کي ۱تن اودهرات په شينډنډکي ۱تن عسکر دمجاهدينو ملګری شو.

داګست پر۱۷مه د تخار د کلفګان ولسوالۍ کې ۸ تنه عسکر، دپکیتا احمدابادکې ۱پولیس ،دپکتیکا متاخان کې ۲ اربکیان او دفاریاب دقیصار ولسوالی کې ۷تنه عسکردکابل له فاسدحکومت څخه راجلا شول اودامارت سره یوځای شول.

داګست پر۱۸مه ۵۰ تنه عسکر دباغس ولایت دابقمری ولسوالی دنرودکلي اوسیدونکی له دروراکیټو اودرو ثقیلانو اوځلور څلویښت کلاشنکوفو سره دکابل دبلواک رژیم څخه رابیل اواسلامي امارت سره یوځای شول. دغه رنګه پرهمدې نیټه دننګرهار په چپرهارکې ۲ تنه عسکر ،اولعل پورې ولسوالۍ کې۱۲ تنه عسکر له اسلامي امارت مجاهدینو سره یوځای شو .دامارت دجلب جذب مسؤلینو اوځایي مجاهدینو ددوی ډیر تود هرکلی وکړ.

داګست پر۱۸مه د بلخ چمتال کې ۳ اربکیان، تخار د بهارک ولسوالۍ کې ۸ عسکر، پکتیکاا ورممی ولسوالۍ کې۲اربکیان او جاني خیل کې۱اربکی داسلامي امارت له مجاهدینو سره یوځای شو.

داګست پر۱۹مه د پکیتکا یحی خیل کې۱اربکی ،وازیخوا او یوسف خیلو ولسوالیو کې ۲ عسکر، دننګرهار ولایت د حصارک ولسوالۍ کې ۸ تنه عسکر ،دکندهار په معروف ولسوالي کي۱تن ، اودروزګان ولایت دچوری ولسوالي کي۱تن پولیس اودپکتیکا یحی خیل کې۱اربکی له مجاهدینو سره یوځای شو.

داګست پر۲۰مه د لوګرخوشي کي ۳تنه دعسکر، د پکتیکا سروبي کې ۳ اربکیان اودارزګان ولایت دهراودولسوالۍ کي ۲ تنه هریو قومي مشر ملک عبدالشکور خان اومیر عبدالراق له فاسدی اداری راجلاشول اوداسلامی امارت ملګری شول.

داګست پر۲۱مه دننګرهار په ده بلاولسوالۍ کې۱۰ تنه عسکر او دکندهار ولایت په معروف ولسوالي کي۲تنه عسکر او پکتیکا جاني خیل کې۱عسکر له مجاهدینو سره یوځای شو .

داګست پر۲۲مه دپکتیکا تروه ولسوالۍ کې د جاسوسي اداري ۵ عسکر او ۳ پولیس اودهرات ولایت دادرسکن ولسوالی کي یوقوماندان له یوه عراده رینجر موټر اویوه میل سقیل ماشیدار اوپنځه میله کلاشنکوفو اویوی پایی مخابری سره مجاهدینو ته تسلیم

شودمجاهدینو لخوا یه تودهرکلی وشو او په ډیر لوړوجائزوسره ونازول شواودده دغه شعوری اوعقلمندانه اقدام یې وستایه.

داګست پر۲۳مه د لوګرازره کې۱تن عسکر،دخوست په موسي خیلو ولسوالۍ کې۲ عسکر،دننګرهارپه اچین ولسوالۍ کي ۲ تنه اورودانوکي۲تنه عسکر ،او دفراه ولایت دبالابلوک ولسوالۍ کې۱تن پولیس له مجاهدینو سره یو ځای شو.

داګست پر۲۳مه قوماندان شفیع له ۳۰ کسانو سره دمیدان وردګ ولایت دجلریز ولسوالۍ دتنګی په کلي کي د کابل دفاسد حکومت له لیکو راجلاشو اوداسلامی امارت له مجاهدینو سره ملګری شو ،نوموړي ته مجاهدینو ښه راغلاست ووایه اوډیریې وستایه.

داګست پر۲۴مه د پکیتا مرکزته څېرمه۱عسکر، د لغمان علیشنګ کې۱۰تنه عسکراودغزني دګیلا ن په ولسوالي کي۲تنه اربیکان دمجاهدینوسره ملګری شول .

داګست پر۲۵مه د بامیان په کهمردولسوالۍ کې ۳ د اوردو عسکر،د پکیتا ځاځي اریوب کې ۳اربکیان ،اودروزګان ولایت دمرکزاړوند۵تنه عسکرددووقوماندانا نو په شمول داسلامی امارت له مجاهدینو سره یوځای شول.

داګست پر۲۶مه ۱۵ته اربکیان دفاریاب ولایت دقیصار ولسوالۍ کې دکابل له اجیررژیم څخه راووتل اوداسلامی امارت تر قیادت لاندی یې خپل هوسا ژوند پیل کړ.

داګست پر۲۷مه ۷ تنه عسکردروزګان ولایت په مرکز کې دفاسدی اداري څخه راووتل اوداسلامی امارت سره یې ملاتړاعلان کړ.

داګست پر۲۸مه اووه اتیا ۸۷تنه د اوردواوپولسو او ربکیانو له جملې څخه دسرپل په ولایت کې دمختفوولسوالیواوسیدونکي دکابل دفاسد حکومت له لیکو راجلاشول اوداسلامی امارت له مجاهدینو سره ملګری شول.دغه رنګه پرهمدې نېټه دکندهارولایت دخاکریزولسوالۍ کې ۳تنه دکابل اداري همکاران دمجاهدینوسره ملګري شول.

داګست پر۲۹مه ۱۴ تنه دمیدان وردګ ولایت دمرکز دجندی خیلو اودرانی دکلیو اوسیدونکي دکابل دبلواک رژیم څخه رابیل اواسلامي امارت ملګری شول.دوی ژمنه وکړه چي نوربه داسلامي امارت سره خپله همکاري کوي. دغه رازپرهمدې نیټه دزابل ولایت په بیلابیلوولسوالیوکي ۵تنه دکرزي داداري څخه راوتلل اودمجاهدینوسره ملګري شول.

داګست پر ۳۰مه شل(۲۰) تنه پولیس اواربکیان دغور ولایت ده دولینی ،شهرک اوشنکوټ ولسوالیو په مختلفو کلیو کي دفاسد یاوګوډاګی اداري څخه راووتل اوداسلامی امارت له مجاهدینو سره ملګری شول.

داګست په بیلابیلو ورځوکي دکونړ د مختلفو ولسوالیو نه د اجیرې اوردو پولیسو اربکیو نه ۲۰۰ تنه داسلامي امارت له مجاهدینو سره یوځاي شول.یادشوي حکومتي چارواکي چي په مختلفو برخو کې دندې ترسره کولې د دعوت او ارشاد کمیسیون د دعوت په نتېجه کې مجاهدینو سره یوځای شول او دمجاهدینو له له لوري یې ښه استقبال وشو.

داګست پر۳۰مه نیټه دهلمندولایت په موسی کلا ،نوزاداوسنګین ولسوالیوکي ۳۴تنه چي دکابل اداري په مختلفوارګانونوکي یې کارکاوه ددغه ګوډاګي رژیم څخه راوتلل اوداسلامي امارت سره یوځای شول.

دکابل اداري څخه راجلاشوو ۷۲۷تنوچي داسلامي امارت له مجاهدینو سره یوځای شول ، مختلفه النوعه لويي اووړې وسلې ،مخابرې ،موټرسايکلونه ،۲عرادې رینجرموټراویوزیات شمېرمهمات مجاهدینوته وسپارل.

دوی دامارت سره وعده وکړه چي نوربه دخپل ددین اووطن دخارجي اوداخلي مزدورانو سره هیڅ رازتعلق نه ساتي ،دخپل مظلوم ولس اومجاهدینوورونوسره به همکاري کوي ،ترڅولوی خدای جل جلاله ژرترژره زموږله ویاړلې خاوري څخه دکفر،فسق ، ،اشغال ،فحشاءاوګمراهیو کرغیړن تغرټول کړي اودمسلمانانودخوښي یوسوچه اسلامي واکمني رامنځته کړي چي دټول افغانان پرې راټول شي.

داسلامي امارت ددعوت ،ارشاد ،جلب اوجذب کمیسیون مشرتابه دوی ته هرکلی ووایه ،انعامونه اوجایزې یې ورکړې اوددوی همدانیک اقدام یې ډیروستایه چي دیرغلګرواولاسپوڅي رژیم څخه یې راووتل اوداافغانستان اسلامي امارت دمجاهدینو سره یې خپل پیوستون اعلان کړ.

# شهيدې قافلې

## شهيد عبدالحميد اخندزاده

شهيد عبدالحميد اخندزاده د مولوي عبدالكريم زوى ، د ورد گو ولايت د سيدآباد ولسوالۍ د تنگي د كامر انخيلو اوسيدونكى وو.

نوموړى په (۱۳۴۷ ه ش) كال د ښاغلي مولوي عبدالكريم صاحب په ديندار ه او مجاهد پرورو كورنۍ كې زيږيدلى وو.

پر شهيد عبدالحميد اخندزاده لا د خپل عمر لس پسرلي نه وو تير سوي چې پلار يې ديني زده كړو ته وقف كړ ، په خپل كور او د كلي په مسجد كي به يې ديني زده كړې ترسره كولې، كله چې روسي يرغلگرو پر هيواد يرغل وكړ ، د نوموړي پلار مولوي صاحب هم د نورو هيوادوالو په څير گاونډي هيواد ته هجرت وكړ ، د مهاجرو په يوه پنډغالي كي يې د ديني زده كړو ترڅنگ عصري زده كړو ته هم مخه كړه.

خو چې د روسي نيواكگرو په خلاف د هيواد مؤمن اولس په مبارزه لاس پورې كړ ، دا مهال نوموړى ۱۷ كلن زلمى وو ، په همدې تاند عمر كې د پكتيا ولايت ته راغى ، له مجاهدينو سره يوځاى سو ، د دښمن پـه وړاندې يې كلكه مبارزه پيل كړه ، د وخت په تيريدا سره يې د مسؤلينو په زړونو كي ښه ځاى پيدا كړ ، ور سره په همدې جهادي دوره كي دوه ځله زخمي سو ، يوځل پـه (۱۳۶۸ هش) او بل ځل د روسانو د وتلو پـه مهال پـه لوگر كې، همدارنگه د گلم جم قواوو لخوا يوځل اسير سوى هم وو چې له سختو شكنجو وروسته ژوندى راخلاص سو ، خو له دې ټولو ربړو او تكليفونو سره سره يې بيا هم سپيڅلې مبارزې ته دوام ور كړ .

د روسي يرغلگرو له وتلو وروسته چې د جهاد او مجاهدينو د بدنامۍ پـه خاطر ځيني عناصر د كفارو پـه لمسون راپورته سول، په هيواد مطلق ملوک الطوائفي مسلطه سوه او د همدې فتنې د لـه مينځه وړلو پـه موخـه د طالبانو اسلامي تحريک پيل سو ، شهيد عبدالحميد اخندزاده هم په نوموړي نظام كي شامل سو ، د اسلامي امارت په دوران كي د هيواد پـه مختلفو سيمو كي پـه خدمت بوخت وو ، وروسته چې كله د امريكايانو او د هغوى د متحدينو يرغلگرو له راتگ وروسته يوځل بيا منظم جهاد پيل سو ، شهيد عبدالحميد صاحب هم په عملي جهاد

پیل وکړ چې زیات شمیر نوي ځوانان او هم پخواني مجاهدین یې په خپل جهادي صف کې ورزل ، نوموړی به دخپلو مجاهدو ملګرو په مابین کې د ډیر احترام په وجه د کاکا ، یا د مشر اخندزاده په نوم هم یادیدی ، البته د مخابرې نوم یې کامران وو

بالاخره له زیاتو غزاګانوو وروسته په ۱۳۹۰ هش کال د رمضان المبارک په ۷ د شپې پر ۱۱ بجې د صلیبي یرغلګرو په هوائي او زمیني چاپه کې له یوځه مقاومت وروسته د نورو پنځو ملګرو (ملافریداحمد، نصیب احمد، ګل نبي اخندزاده ، روح الله او احمدشاه) سره یوځاي د شهادت لوړ مقام ته ورسید. روح دې یې ښاد او یاد دې یې تل وي، انالله وانا الیه راجعون

په همدې وخت کې نور شاوخوا ور سره مجاهدین په تکتیکي توګه خواره واره سول او د یرغلګرو نوري قواوې چې سیمې ته د راتلو په حال کې وي ، د همدې شیدانو له شهادت څخه نیم ساعت وروسته د امریکایانو د خاص ګارډ او هغه ځانګړي ځواک – چې د پاکستان په أیبټ آباد کې د شهید شیخ اسامه بن لادن د کور په چاپه کې هم کار ورڅخه اخیستل سوی وو – یوه چینوک ډوله الوتکه د ملا حبیب مجاهد د راکټ لانچر د مرمۍ خوراک سوه ، او په درجنونو یرغلګر په کې له مینځه ولاړل.

# شهید حاجي حمیدالله

شهید حاجي حمیدالله د حاجي مولوي احسان الله (مشهور په مولوي بور) زوی د حاجي اغاجان لمسی د هرات ولایت د ګلران ولسوالۍ د طوطچې د کلي اوسیدونکی وو.

نوموړی په ۱۳۵۶ هش کال د حمل دمیاشتې په لمړۍ نیټه د اسحاق زو د قوم په یوه دینداره او متدینه کورنۍ کې زیږیدلی وو

لکه څنګه چې شهید حاجي حمیدالله د ښو اخلاقو او نیکي روېې څښتن وو، همدار از الله تعالی ورباندي ښه او خوشاله قیافه لوروله وه ، د ملګرو ، کورنیو ، او عامو خلګو په زړونو کې یې ژور ځاي درلود

د اسلامي امارت په مهال یې په بادغیس ولایت کې د دره بوم ولسوالۍ د قمندان په حیث دنده ترسره کوله ، ورسره د فاریاب ولایت د بندر او لولاش په ولسوالیو کې همدار از د سرپل په ولایت کې د کمربند مسؤل وو ، د صلیبي یرغلګرو له راتګ سره چې په ټول هیواد کې د مجاهدینو له لوري پر دښمن وسلوال او چریکي بریدونه پیل سول، شهید حاجي حمیدالله هم د نورو مجاهدینو په څیر په مختلفو سنګرونو کې د صلیبي یرغلګرو او د هغوي د ګوډاګیانو په وړاندي مبارزه پیل کړه، لمړی د هلمند په مارجه ، نادعلي او ناوه کې

،ورپسي د نیمروز په دلارام ، د هرات په شینډنډ او ګلران ولسوالیو کي دندې تر سره کړې ، د هرات ولایت په ګلران ولسوالۍ کي د دښمن له لوري یوځل ژوندی ونیول سو، له یوڅه مودې بند تیرولو وروسته بیر ته راخلاص او په پوره متانت یې د جهاد ګرم سنګر ته مخه کړه، چي بالآخره د ګلران په ولسوالۍ کي په شهادت ورسید. اناالله وانا الیه راجعون

# شهید ملاعبیدالله (حسن)

ملاعبیدالله حسن د حاجي ملامحمدافضل (عمر) اکازوي د ارزګان ولایت د دهراؤد د کاریز د کلي اوسیدونکي، د نورزو د قوم د یوې جهاد پالي کورنۍ غړی وو، دی هم د ابتدایي دورې ۲۱ کلن طالب وو، لمړی یې د هلمند په انار ک کي تقریباً دوه کاله سبقونه وویل له هغه سره سره به د یوه سیمییز قمندان مجاهد(قهار زبیر) په محاذ کي له مجاهدینو سره جهاد ته روان وو، د وروڼو (ملانعمت الله او ملاحبیب الله له شهادت وروسته) د ملاعبدالولي اخند محاذ ته راغی د خپل مشر ورور مسؤلیت ور له غاړي سو، دا چي دی د یوه ښه سلف پر ځاي پاتي وو ؛ نو پر اولس او مجاهدینو ډیر ګران وو او ده ته هم الله تعالی ډیر ښه ظرافت ورپه برخه کړی وو.

نوموړی د خپل شهید ورور ملا نعمت الله (حسن) په څیر د یو ډیر خواږه طبیعت څښتن وو، د خلګو په زړونو کي یې ښه ځاي درلود، تر دې چي کله به هم لکه ملانعمت الله د چاکور ته ورغی ؛ نو د دې پر ځاي چي د میلمه په کوټه کي یې کښینوي، د خپل کور په خونه کي به یې له ځان سره کښیناوو، تر څو دښمن د میلمه ګمان ورباندي ونکړي.

شهید ملاحبیب الله په یوه داسي جهادي کورنۍ کي زیږیدلی وو، چي د ده په شمول له نوموړې کورنۍ څخه شپږ تنه شهیدان د الله تعالی پر دین قربان سول.

د ورور له مرګه تقریباً ۱۷ میاشتې وروسته دی هم په شهادت ورسید، دا مهال (۲۰۱۰–۸–۱۵) نیټه وه.

واقعه داسي وه چي د زمینداور په سپیدی کي د شپې ۱۲ بجې چاپه سوه ، تر سهاره چاپه وه ، نوموړی د دوو نورو ملګرو په شمول د صلیبي پر غلګرو له خوا په شهادت ورسید، انا لله وانااليه راجعون

پر مېنه یې له پلار مور او وروڼو پر ته یوازې یوه میرمن، یو زوی پاتي سول، زوی یې ( جهادالله د ده شهادت په مهال ۳ کلن ماشوم وو)

د ملاعبیدالله له شهادت وروسته د نوموړي ټوله کورنۍ چونکه په دې لاره کي قربانۍ ته عملاً تیاره سوه ، له کشره تر مشره ټول په کي په خدمت بوخت سول، د مجاهدینو مر کزیې هم د کور څنګ ته وو.

یوه شپه (۲۰۱۰-۱۰-۱) د ښمن د دوی پر مرکز او کور چاپه ووهله، په کور کې یې یوازې ښځې، ماشومان او د محمد ګل (۱۷ کلن) جنت ګل (۱۴ کلن) او سعدالله (۱۴ کلن)—دایې سکنی ورور هم وو-په شمول نور څوک نه وو، دښمن هم خپله سینه د دې درو تنکیو ځوانانو په شهادت یخه کړه، ورسره په کلي کې په یوه بل کور کې یې یوه میرمن او یو ځوان په شهادت ورسول، د سهار پر آذان بیر ته دښمن له سیمې ووت

مشر ورور یې د عبیدالله تر شهادت دوې میاشتې مخکې بندي سو، تر اوسه په زندان کې دی په تیری کې.

والدصیب یې تقریباً له نن څخه ۱۹ میاشتې مخکې ملاقات ته ورغی په هماغه ځای کې یې درې شپې بندي کړ او بیا یې امریکایانو ته وسپاری، ۱۶ میاشتې په بګرام کې وو، اوس راخلاص سوی او بیر ته په سنګر کې دی، د شهید ملاعبیدالله پر ځای اوس د نوموړي فیدامحمد (حسن) کار کوي.

# دغزني په ګیروکې درندې چاودنې ۱۵ اشغالګر عسکر ووژل

په ۲۴-۰۸-۲۰۱۳ تاریخ په خبرکې راغلي مجاهدینو دیادي ولسوالۍ په شیخو سیمه کې په یوه کلاکې ۳۰ ماینونه ځای په ځای کړي وو، کله چې یرغلګر عسکر ورته شپه مهال خواو شا ۱ بجه راغلل د پلان له مخې پرې په یو وار ټول ماینونه انفجار شول.
د عیني شاهدانو په وینا په دې زوروره چاودنه کې ۱۵ تنو اشغالګرو عسکرو خپل ژوند له لاسه ورکړ او یو ګڼ شمېر نور ټپیان شول.
عیني شاهدان وايي په سیمه کې تراوسه پوري دوژل شویو عسکرو دبدن ټوټې او تخریب شوي وسلې پرتې دي